# تاریخ او ټولنه





لیکوال: ډاکټر مبارک علي

ژباړن: میر احمد یاد

تاریخ چمتو دی، موږ ته ډېر څه را زده کړي.
آیا موږ چمتو یو؟
ډاکټر مبارک علي

# د ژباړن سریزه

همدا کتاب مې ژباړه، چې یو ملګري مې وپوښتلم، ددې کتاب ژباړه به موږ ته څه ګټه ولري؟!

دا پوښتنه رښتیا هم مهمه ده، ځکه د هغه ملګري سربیره به ډېر لوستونکي هم ورته پوښتنې سره مخ وي. زه یې دا څو کرښې ځواب لرم او هیله لرم چې زما کړی کار او د ملګرو ویستلي زیار ته به لږ تر لږه یو اخلاقي جواز ورکړي.

لومړی خو د نړۍ په ټولو انسانانو کې د (انسانیت) په نوم یو ګډ ارزښت شته دی، ټولنه د انسانو مجموعه ده او که دا ارزښتونه ورسره زموږ هم ګډ وي؛ نو بیا حتمي ده چې یو څه ورته ستونزې به زموږ په ټولنې کې وې او ممکن اوس هم شته وي.

د درېیمې نړۍ هیوادونه تقریباً سره ورته او ګډې ستونزې لري، ډاکټر مبارک علي بیا دا دابیره نوره هم راټولوي او د پخواني هند (برصغیر) په وچې کې شته ستونزې په ګوته کوي. کمال دا کوي چې پېړۍ پخوانی ستونزې اوس په خپلو ټولنې کې ګوري او بیا یې په تاریخ کې ریښې لټوي.

په دې کتاب کې ډېرې داسې ستونزې شته، چې زموږ ټولنه ورسره اوس هم مخ ده او که خپل تاریخ ولولو ممکن پخوا هم ورسره وه. استادانو به

راته ویل چې په پوهنتنې پوهېدل نیم خواب دی. که له دې کتابه د خپلې

ټولنې شته ستونزې راوباسو؛ نو وګڼه چې نیمې مو حل کړې او د سمو

نورو لپاره به یې هڅې منظمې او ګټورې وي.

تاسو او تاریخ او ټولنه !

میر احمد یاد

# لړلیک

مخ — موضوع


فرقه واریت ........................................ ۱
ښځې او فرقه واریت ........................................ ۲۲
اسلام او د نوي دور غوښتنې ........................................ ۲۷
په پخواني کې د مسلمانو د بېلتون فکر ........................................ ۳٦
له ماضي څخه سیاسي ګټه ........................................ ٤۵
تاریخ لیکوالي او ذهن جوړېدل ........................................ ۵٤
تاریخ : فتحه او ماته ........................................ ۵۸
جهوریت یا دیموکراسي ........................................ ٦۱
د ولسي مقاومت لارې چارې ........................................ ٦۷
جمهوریت او ولسي مظاهرې یا لاریونونه ........................................ ۷۰
رسالې او د سیاسي شعور کمپاین ........................................ ۷۳
د لاسلیک کمپاین ........................................ ۷٦
زموږ مشران (رهبران) ........................................ ۷۹
ولس او حاکمان ........................................ ۸۲
ولس او چارواکي ........................................ ۸۵
سیاست او دسیسه (سازش) ........................................ ۸۸

# لړلیک


| موضوع | مخ |
|---|---|
| سیاسي مخالفت | ۹۱ |
| ولس او پولیس | ۹٤ |
| څارونکي او څارګرې ادارې | ۹٦ |
| ولې فساد؟ | ۹۹ |
| فساد او ټولنه | ۱۰۲ |
| سوداګر، دوکاندارن او فساد | ۱۰۸ |
| چارواکي او فساد | ۱۱۰ |
| سیاسیون او فساد | ۱۱۳ |
| فساد: پرون او نن | ۱۱٦ |
| کار | ۱۱۷ |
| غوړه مالي | ۱۲۰ |
| مساوات | ۱۲٤ |
| سوالګر | ۱۲۷ |
| ټوکې ټکالې | ۱۳۰ |
| زموږ ټولنه او NGO | ۱۳۳ |

# فرقه واریت

په اردو ژبه کې کمیونل ایزم (Communalism) او سیکټرین ایزم (Sectarianism) دواړو ته د فرقه واریت کلیمه کارول کیږي ؛ خو دا دواړه انګلیسي اصطلاحات د دوو جلا جلا حالتونو ښکارندوي کوي. د کمیونل ایزم اصطلاح په ځانګړي ډول هند کې د دوو مذهبي ډلو لپاره کارول شوې ده. انګریزان چې هند ته راغلل، د مسلماني او هندو طبقې تر منځ یې د مذهبي اختلاف او بېلتون نظریه رامنځته کړه، وروسته همدې توپیر ورو ورو د کمیونل ایزم اصطلاح وزیږوله. ګیان پانډې په خپل کتاب (شمالی هند می کمیونل ایزم کی تشکیل) کې دې اصطلاح ته اشاره کړې او ویلي یې دي، چې په ۱۹۳۳ ز کال کې په اکسفورډ ډکشنری کې داسې مانا کړې وه (د یوې ټولنې د تنظیم اصول یا د حکومت تیوري چې په مرسته یې ځایي ډلو ته مستقل واکونه ورکول شوي وي) یا هم په ۱۸۷۱ ز کال کې په پاریس کې رامنځته شوي کمیون سره اړیکه لرونکي خلک یا ډلې.

خو په ۱۹۵۹ز کال کې چې د اکسفورډ کومه ډکشنري چاپ شوې هغې کې ددې مانا (د مذهبي او نسلي ډلو سره اړیکې لرونکی) شوې ده. که څه هم په دې ډکشنری کې یې پوره تعریف نشته؛ خو په هند کې چې د سیاسي بدلونونو سره کمیونل ایزم او کمیونلسټ اصطلاحات په کومه مانا کارول کیږي؛ دا په ځانګړي ډول د هندوانو او مسلمانانو د کش مکش، ټکر او شخړو په دایره کې راځي؛ نو له دې امله کمیونل ایزم د ددوه

مذهبونو د خپل منځي ټکر نوم دی. دا ټکر په اسلام او عیسویت کې هم شته، خو د هغو لپاره د کمونل ایزم اصطلاح نه کارول کیږي.

په هند کې له تاریخي پلوه هم ددې اصطلاح په مانا او مفهوم کې بدلونونه راغلي دي، ګیان پانډې وایي، چې په ۱۹۲۰ -۱۹۳۰ ز لسیزې کې دا کلیمه په منفي مانا نه کارېدله او استعماري حکومتونو د کمیونل نمایندګۍ او کمیونل احساساتو کلیمې کارولې، خو په هند کې چې د هندوانو او مسلمانانو تر منځ خومره مخالفت زیاتېده، دې اصطلاح هم ورسره خپله مانا بدلوله.. په ۱۹۲۴ زکال کې په اقلیتونو یو راپور چاپ شو چې د کمیونل په اړه پکې یو فصل و، بیا په ۱۹۲۸ ز کال کې د نهرو په راپور کې د کمیون مسله د هندوانو او مسلمانانو د اړیکو په بڼه کې رامنځته شوه، له دې وروسته بیا دا اصطلاح په عمومي ډول د هندوانو او مسلمانانو خپل منځي اختلاف، کش - مکش او ټکر ته کارېدله.

ددې برعکس د فرقه واریت یا سیکتیرن ایزم اصطلاح د دوو مذهبونو د تصادم پرځای، په یوه مذ هب کې دننه د فرقه واریت، ډلو ټپلو او اختلافاتو لپاره کارېدلې ده، لکه په عیسویت کې د کاتولیک او پروټیسټنټ یا معترضینو ډلو تر منځ شخړې او اختلافات او همدارنګه په مسلمانانو کې د شیعه ګانو او سُنیانو اختلافات او داسې نور...

که اوس موږ د کمیونل ایزم او سیکتیرین ایزم خبره کوو؛ نو ددې دواړو لیوالتیاوې او ددې د اغیزو په اړه باید وضاحت وکړو. که څه هم دې ورځو کې په دې لیوالتیاو کې ورته والي او نږدې والې هم شته، تضادات هم لري، خو ددې پېل، خپراوي او پایلې سره جلا دي. لومړی به دا ووایو چې کمیونل ایزم څه ته وایي؟ ددې تعریف بپن چندر په خپل کتاب ( کمیونل ایزم او ماډرن انډیا) کې داسې کوي ( کمیونل ایزم د هغو احساساتو، افکارو او نظریاتو نوم دی چې په مرسته یې څینې خلک یا ډلې خپلو

سیکولر او دنیاوي ګټو ته مذهبي رنګ ورکوي او له دې ادرسه یې د حل کولو هڅې کوي). ددې مذهبي ډلو ګټې داسې ښودل کیږي لکه دا د ټولنې ګټې. پخپله په ټولنه کې د بېلابېلو ډلو ګټې سره جلا وي، سیکولر ګټې د نورو مذاهبو له ګټو سره په ټکر کې راځي او له امله یې په دوو ډلو یا ټولنو کې ټکر رامنځته کیږي.

په کمیونل ایزم کې د ټولنې یا ډلې د یووالي اصلي محور مذهب وي او د همدې پربنسټ په ټولنه کې طبقاتي، نسلي، او ژبني اختلافات پټیږي، هڅه کیږي چې خلک په همدې مذهبي بنسټ سره راټول شي او په مرسته یې بیا ټولنیز او اقتصادي امتیازات ترلاسه شي. ددې موخې لپاره داسې نښې او سمبولونه رامنځته کیږي چې د ټولنې پېژندګلوي ترې وشي او د ټولنې هر غړی ورسره اروایي تړون ولري. یو کس چې د خپلې ډلې یا ټولنې له ادرسه وپېژندل شي، نو ټولنه یې بیا د سر او مال دفاع تضمینوي او په مقابل کې یې هر ډول قرباني ورکولو ته چمتو کیږي.

(۲)

زیاتره مؤرخین پردې متفق دي چې کمیونل ایزم د استعماري دور زېږېدلې اصطلاح ده. که څه هم په منځني دور کې د هندوانو او مسلمانانو اختلافات و، خو دا چې حکومت سیکولر و؛ په شخړو او جګړو وانه وښت. ډاکټر کنور شریف په خپلې لیکنې ( عهد وسطي کی سماج می مذهب کی حیثیت) کې د مغلو د وروستیو دوه کیسې کوي، چې کمیونل یې ګڼلای شو. یوه د کشمیر پېښه ده چې یوه مذهبي عالم خپل مغل ناظم له خپلو څو ملګرو سره په کور کې بند کړ او خپله یې د حکومت واګې په لاس کې واخیستل او په خلکو یې بندیزونه ولګول مثلاً وېل یې چې هندوان دې په اس نه سپرېږي،یا یو ډول کالي نشي اغوستلی، بیا لږ وخت وروسته ترې هماغه خلک تنګ شول، مغل ناظم یې له بنده راخلاص کړ او اسلامي نظام یې له منځه یووړ. یوه بله پېښه په ګجرات کې شوې وه، هلته په شاه جهان بندر کې د (ماراوړي سېټانو) او (بوهرو) ترمنځ شخړې کېدلې، بوهري مسلمانانو د اسلام او هندو سېټانو له خپل مذهب څخه د دفاع لپاره مسلح شول، بالاخره مغل ناظم په ډېرې سختۍ شخړه هواره کړه.

په هند کې چې انګلیسي حکومت رامنځته شو، د هندي ټولنې جوړښت یې بدل کړ. استعماري نظام د خپلو ګټو او اړتیاوو په خاطر سیاسي، ټولنیز او اقتصادي بدلونونه رامنځته کړل، دې بدلونونو د پخوانۍ طبقې پرځای نوې طبقې رامنځته کړې. هغه کسبګرې طبقې چې په پخوانۍ

ټولنې کې د خپل فن په مرسته قوي او ځواکمنې شوې د نوې ټکنالوجي په راتګ سره له خپل فن، کسب او روزګاره بې برخې او اوزګارې پاتې شوې. د حکومتي دندو او واک خبره چې مطرح شوه؛ نو هندو او مسلمانو طبقو پر حکومت فشار راوړ او پر دوو جلا جلا طبقو ووېشل شوې، دواړه ډلې پخپل منځې کې متحدې شوې او مذهبي پېژندګلوي راڅرګنده شوه، په حکومت کې چې ځينې دندې د ازادو ټاکنو له مخې ورکول کېدې؛ په دې دواړو ډلو يا ټولنو کې د اکثريت او اقليت احساس راپېدا شو، دا احساس بيا د سر شمېرنې په وخت کې لاپسې قوي شوؤ چې خلکو ته يې د شمير احساس هم ورزيات کړ. د هرې طبقې شمير د هغوي د ساتنې او خونديتو ب سره اړيکه لرله، ددې حساب له مخې هرې طبقې او ټولنې خپلې غوښتنې مطرح کړ ې. دا چې هندوان اکثريت وو؛ نو د قوت احساس يې وکړ او مسلمانان د اقليت له امله د کمترۍ په احساس اخته شول دې سره يې ناخونديتوب هم احساس کړ او له امله يې پکې وېره هم راپېدا شوه. سيداحمد خان او ملګرو يې دا پاليسي اختيار کړه چې مسلمانان دې د حکومت له سياسته لرې وي خو وفاداري دې کوي،چې ساتنه يې وکړي. په مسلمانانو کې يوه بله ليوالتيا دا رامنځته شوه چې خپل اقليتي احساس په مسلمان امت بدل کړي. د نولسمۍ په وروستيو او د شلمې پېړۍ په پېل کې مسلمانانو له هند دباندې خپلې ريښې ولټولې او ليدل کيږي چې د عثمانيه امپراطورۍ سره يې خپله وفاداري اعلان کړه. دې سره په مسلمانې او هندو طبقو کې بيلتون لا زيات شو، ځکه په مسلمانانو دا نيوکه کيده، چې د هند حکومت پرځاى يې خپله وفاداري له نورو اسلامي حکومتونو سره اعلان کړ ه.

د کميونل ايزم دغه جذبه چې بنسټ يې مذهب و، له دواړو خواوو

منځنی طبقې را پیل کړې وه، ځکه په واک کې برخه، دندې، کاروبار او سوداګرۍ کې ګټه کول یوازې تر منځنی طبقې محدود وو؛ نو ځکه ویلای شو چې کمیونل ایزم په همدې طبقو کې رامنځته شو او همدلته یې خپلې ریښې وغځولې، خو د خپلې وفادارۍ ساتلو لپاره یې پرلپسې دا هڅه کوله چې ټولنه یا ډله د مذهب پربنسټ سره متحده کړي. ددې کار لپاره له دواړو خواوو څخه ځانګړي مراسم او سمبولونه رامنځته شول چې وروسته یې عام خلک هم په ځان کې راونغاړل، مثلاً هندانو کې د غوا احترام، د پیپل د ونې تقدس ... او داسې نور مهم شول او په مسلمانانو کې بیا د مسجد مخې ته باجه غږول احساساتي مسله شوه او همدارنګه د (ګن پتي مراسم) یا د محرم لاریون د هندو او مسلمانو عوامو لپاره د احساساتو د ځرګندولو وسیلې شوې، همدې سمبولونو او مراسمو عام ولس هم په کمیونل ایزم کې ورګډ کړ.

اکثریتي او اقلیتي شعور دا طبقې ډېرې حساسې کړې، دواړو هڅه کوله چې شمېر یې کم نشي. بیا چې عیسوي مبلغینو د عیسویت تبلیغ پېل کړ او غوښتل یې خلک عیسویان کړي؛ نو په مسلمانانو او هندو طبقو کې یوه ویره خپره شوه او دا احساس پکې پیدا شو، چې حکومت غواړي ددوی مذهب له منځه یوسي او ټولنه عیسوي کړي. سرسید د ۱۸۵۸ ز کال د بغاوت یو لامل د عیسوي مبلغینو فعالیتونه ښودلي وو. د مذهب د ساتنې همدې جذبې بیا وروسته مذهبي تنظیمونه رامنځته کړل، مثلاً د آریه ولس تحریک چې له پنجابه پېل شو او تر شمالي هنده وغځېد. دا تحریک د هندوانو د شمیر ساتلو لپاره وچېلد، هغه خلک چې مسلمان شوي وو غوښتل یې بیرته یې سوچه هندوان کړي. په ځواب کې یې بېرته مسلمانانو هم تبلیغ او تنظیم پېل کړ، پایله دا شوه چې د لېرې پرتو سیمو او کلیو اوسیدونکي تر دې دمه له مذهبي پېژندګلوی خبر نه وو؛

په هغوی کې هم د مذهبي پېژندګلوۍ احساسات راپېدا شول او پخپلو کې یې مخالفتونه پیل کړل.
مسلمانانو چې د (پان اسلامیزم) په تحریک کې برخه واخیسته او هندوانو ته یې دا احساس ورکړ، چې د نړۍ مسلمانان له دوی سره دي؛ نو په غبرګون کې یې هندوانو داسې تحریکونه وچلول چې ټولې هندو ډلې سره یو کړي او د یوه مذهب تر سیوري لاندې یې راټولې کړي. څکه تر دې وخته هندوایزم د اسلام یا عیسویت په څېر داسې مذهب نه و چې مذ هبي عقاید پکې یو ډول وي. خو ساور کر چې د (هندتوا) کوم نوی تصور رامنځته کړ، پکې د هندوانو اتحاد اویو قوم کول شامل وو.
په داوړوو خواوو کې چې د یووالي او حق غوښتنې شعور پېدا شو؛ نو تعلیمي حرکتونه هم پیل شول. په دې تحریکونو کې پر ځوانونو کار کېده او هغوی یې له ذهني پلوه دې ته چمتو کول چې له دښمن سره وجنګیږي. د پهلوانۍ، تورې وهلو او نښې ویشتلو روزنیز مرکزونه پیل شول او ځوانان ورته ډېر په شوق راتلل. دې کار د دواړو ډلو په عامو خلکو کې وېره پېدا کړه. کمیونل فسادونه چې پیل شول، همدې روزل شویو ځوانانو پکې برخه واخیسته او حالات یې لا پسې کړکیچن کړل.
د کمیونل احساساتو پخولو او ډلې کې د اتحاد رامنځته کولو لپاره کمیونل شخړې اړینې وي، دا شخړې دوه ډلې له یو بله جلا کوي. شخړې زیاتره وخت د یوه منظم پلان له مخې کیږي. کله کله داسې هم کیږي چې یوه کمیونل طبقه په واک کې وي، په دې وخت کې یوه اوازه، دروغ خبر، یا کومه معمولي پېښه د جګړې او فساد لامل کیږي، چې پکې کورونه چور کیږي، ښځې تښتول کیږي او شتمنۍ له منځه ځي، دا ډول شخړې چې په ښار کې پیل شي؛ نو ښار هم پر کمیونل بنسټونوووېشل شي. خلک د خوندیتوب لپاره له خپلې ډلې سره اوسیږي او په دې توګه د ډلو ترمنځ

شته خپل منځي اړیکې هم له منځه لاړې شي. ددې یوه بېلګه لبنان ده، چې ښارونه یې د عیسویانو او مسلمانانو په پولو وېشل شوي دي. له وېش مخکې داسې ډېرې بېلګې شته چې د کمیونل شخړو په مرسته سیاسي ګوندونو خپل ځانونه مشهور کړي دي، لکه په سند کې چې د ( منزل ګاه سکهر) جومات د پېښې له امله د هندو او مسلمانانو شخړې رامنځته شوې. دې کار مسلم لیګ ګوند په سند کې ډېر مشهور کړ، ویل کیږي چې دا شخړې په منظم ډول مسلمانو مشرانو کړې وې. په تاریخ کې دې ته ورته ډېرې بېلګې شته دي.

دې فرقه ایزو شخړو په مذهبي ټولنو کې داسې ترخې خاطرې پرېښودې چې تضاد، بېلتون او تعصب ورځ تر بلې ډېروي. د خلکو ټولنیز شعور ته هم دومره ژور سرایت کوي چې یادونه یې له یوه نسل څخه بل نسل ته پاتې کیږي، د تاریخ برخه ګرځي او فرقه واریت لاپسې پیاوړی کیږي.

د کمیونل ابزم دا جګړه یوازې د میدان جګړه نه وه، په ټولنو یا ډلو کې د مذهبي شعور پخولو او له ټولنې سره د اړیکې قوي کولو لپاره اړینه ده چې د مخالف منفي انځورګري وشي، له هغو ټولو لارو کار اخیستل کیږي چې د مخالف لوري سره نفرت وزیږوي او د یو ځای کېدو ټول امکانات له منځه یوسي. ددې موخې لپاره له تاریخ څخه په ځانګړې ډول کار اخیستل کیږي. هندوانو منځنۍ پېړۍ ظالمانه دور وباله، ځکه هغه وخت حکمرانان مسلمان وو او هغه خلک یې اتلان ونومول چې له دې مسلمانو حکمرانانو سره یې جګړې کړې وې. ددوي په غبرګون کې مسلمانانو خپل اتلان ولټول، هغو حکمرانو هم هڅه چې کوله چې له مذ هب سره یې هیڅ اړ یکه هم نه لرله او یوازې د خپلو سیاسي ګټو لپاره یې فتوحات وکړل، دوی ته یې د عظمت او تقدس درجه ورکړه. د هند تاریخ همداسې کمیونل پاتې شو او لوست یې په دواړو ډلو یا ټولنو کې نفرت او حقارت

رامنځته کړ.

هند کې چې د انګليس پر ضد مبارزه پيل شوه؛ نو سياسي مشرانو د هندي (قوميت) کليمې کارونه پيل کړه. ځکه د استعمار پر ضد مبارزه د هند د ټولو خلکو رنګ، نسل، ژبې، مذهب او سيمه ايزو تعصباتو څخه لوړه وه. ددې تحريک او کميونل ايزم تر منځ مخالفت پخپله تحريک ډير اغيزمن کړ، ځکه دا قومي شعور د مذهبي شعور پر ضد و، مثلاً مسلمانانو دا پوښتنه لرله چې ( دوی لومړی مسلمانان دي که هنديان؟) که دوی اول مسلمانان وي؛ نو هندي پېژندګلويې ثانوي حيثيت لري او مهمه نه ده او که اول هنديان وي؛ نو مذهبي پېژندګلويي کمزورې کيږي.

دې مسئلې په خپله مسلمانانو کې هم مخالفتونه راپيل کړل او هغه خلک چې ځان يې لومړی هنديان ګڼل ( نيشنليست مسلمانان) وګڼل شول. د کميونل ايزم اچول شوی درز د انګليسي استعمارګر ځواک په ګټه تمام شو. دوی له دې حالته ګټه واخيسته او هڅه يې وکړه چې ښېلتون لا پسې ډير شي. د شملې د استازي غوښتنې يې ومنلې، چې دا به د مسلمانانو لپاره جلا انتخاب وي او په دندو کې به برخه لري، دې کار د هندوانو او مسلمانانو اختلافات لاپسې ژور کړل.

کميونل اېزم له يوې خوا د قومي شعور په لاره کې خنډونه رامنځته کړل او له بلې خوا يې د طبقاتي شعور د لوړيدو مخه ونيوله. ځکه مذهب طبقاتي اختلافات پټ کړل او د مذهب پر بنسټ، بيوزله، شتمن، ظالم او مظلوم ټول يو شول. دې کار لوړو طبقو ته ګټه ورسوله، دوی له کميونل احساساتو ګټه پورته کړه او خپل امتيازات يې خوندي وساتل.

د قومي شعور او طبقاتي احساس کمي دا ټولنې يا ډلې له ذهني پلوه وروسته پرېښودلې. له اصولي پلوه ددې دواړو د پرمختګ نمونې په تير وخت کې پاتې وې. هندوانو بيا (رام راج) غوښته او مسلمانانو د اميه او

عباسي خلافتونو خوبونه لیدل. دواړ و د پرمختګ لپاره شاته لیدل او مخکې راتلونکي بدلونونه له یې له نظره غورځولي وو. له دې امله کمیونل اېزم د نوښت پر ضد وي، هره نوې نظریه او نوی فکر خطر ګڼي، چې مذهبي پېژندګلوي به یې کمزورې شي. ددوی د پېژندګلوی ټول بنسټونه د تیر وخت نښې، جشنونه، مراسم، شخصیتونه او له ځانه جوړ شوی شان او شوکت وي.

دوی غواړي پاک، سوچه او له خلکو جلا واوسیږي، یانې کمیونل اېزم له ګډون او جوړجاړي ځخه ډېر لرې وي. دوی فکر کوي څه یوازې ژوند وکړي؛ نو ځان خوندي ساتلای شي، هڅه کوي چې یا د نورو مذهبونو پیروان له ځان سره یو ځای کړي، یا ترې بیخي بېل ژوند وکړي او یا ووژل شي، چور شي، وځورل شي او اړ شي چې ددوی له منځه کډه وکړي.

د مذهبي اختلاف یوه بېلګه هسپانیه ده، هلته چې عیسویت واکمن شو؛ نو مسلمانانو او یهودیانو ته دا موکه ورکړل شوه، چې عیسویان شي، د عیسوي قوم یوه برخه شي او یا هیواد پرېږدي، دې کار هسپانیه له مسلمانانو تشه کړه. بله بېلګه اوسنی اسرائیل دی، دا چې په یهودیت کې نور خلک نشي یهودي کېدای، دوی هڅه کوي په وژنو، ترهګرۍ او چور مسلمان او عیسویان له خپله منځه وباسي، چې سوچه یهودي ټولنه رامنځته شي.

د هند او پاکستان وېش د همدې ذهنیت پایله ده، خو له دې بیلتون سره هم په هند کې کمیونل ستونزه حل نه شوه، ځکه هلته مسلمانان، سیکان او عیسویان ژوند کوي او هندوایزم مذهب د ذات وېش او ټولنیزو درجو له امله یو واحد مذهب نشي کیدای. هلته کمیونل شخړې د اقتصادي، سیاسي او ټولنیز حالت له امله رامنځته کیږي، چې ددې فساد په مرسته مسلمانه ټولنه راڅرګنده نشي. د بېلګې په ډول له وېش وروسته چې په

هند کې کمیونل شخړې وشوې تر شا یې زیاتره اقتصادي عوامل پراته دي. هر وخت او هرځای کې چې مسلمانه ډله یا ټولنه ښه شوې ددې شخړو په مرسته هغوی په لوی لاس کمزوري شوي دي یا کمیونل احساسات سیاسیونو د خپلې ګټې لپاره کارولي دي. انجینر اصغر علي وایي په هند کې کمیونل شخړې د سیاسي لاملونو له امله کیږي؛ نه د مذهبي لاملونو له امله. مذهب د سیاست یوه اله ګرځي او واکمنه طبقه یې د خپلو شخصي او دنیاوي ګټو لپاره کاروي.

په هند کې اوس د کمیونل او سیکولر قوتونو تر منځ یو ټکر شته دی. کمیونل قوتونه غواړي چې د هند د هندو ولس لپاره هندو حکومت رامنځته کړي. مذهبي اقلیتونه یوازې کولای شي چې په هند کې د هغوی په شرایطو ژوند وکړي؛ خو جمهوري او سیکولر قوتونه غواړي د هر مذهب پېرژندګلوي پر خپل ځای وساتي او د هندی ټولنې برخه یې وګڼي. کمیونل ایزم غواړي چې ویې ویشي او سیکولرایزم غواړي چې یو او متحد یې وساتي. دا چې شته کش مکش به څوک ګټي او څوک بایلي ...؟ پرېکړه د وخت په لاس کې ده.

(۳)

د هند برعکس په پاکستان کې بیا د کمیونل اېزم بڼه او لیوالیتاوې بل ډول دي. په ۱۹۴۷ز کال کې چې د وېش پر وخت کمیونل شخړې وشوې، له امله یې دواړو هیوادونو څخه خلک کډوالې ته اړ شول. له سند پرته د پاکستان له ټولو ایالاتونو هندوان هند ته کډه شول. چې امله یې د هندوانو او مسلمانانو بنسټیز اختلاف او شخړې ختمې شوې. پاکستان کې کمیونل جذبې په دوه ډوله دي ، یو خو له پېله داسې فکر کیږي چې هندیانو د پاکستان شتون ونه مانه او غواړي له منځه یې یوسي، دې فکر هندوان د پاکستانیانو دښمنان کړل. ددې دښمنۍ په تازه ساتلو او قوي کولو کې رسنۍ ستره ونډه لري . سیاسیونو د هند دښمني مشهوره کړه او خپلې کمزورې یې پکې پټې کړې. څومره چې هند قوي کېده همدومره په پاکستان کې د ناخوندیتوب او دښمنۍ احساس هم قوي کېد په هند کې چې کمیونل ډلې مشهوریږي دومره ورسره په پاکستان کې د هندوانو تاو تریخوالي هم زور اخلي، له امله یې د پاکستانۍ ټولنې ټولنیز ذهن د هندي دښمنۍ له مخې جوړیږي. دا چې دښمن مخامخ نشته؛ نو د تاوتریخوالي او شخړو جذبې لا پټې پاتې دي.

دا جذبې او احساسات هغه وخت ښکاره کیږي، چې په هند کې له مسلمانانو سره زیاتی یا تاوتریخوالی وشي، دلته لاریونونه کیږي او که د سند په کوم ښار کې د کوم هندو کور په نښه شي؛ نو حمله پرې کیږي. د بابري مسجد له نړیدو سره مسلمانانو په هغو معبدونو حملې وکړې چې

هندانو پرېښي وو، سره له دې چې دا یوازې د معبدونو ودانۍ دي، عبادتونه پکې نه کیږي، یا پکې خلک ژوند کوي او یا هم ښوونیزې اداري دي؛ خو دې خلکو همدا معبدونو سنګسار کړل، وېې نړول او خپله کمیونل یا د مذهبي بېلتون جذبه یې سړه کړه.

اوس هندوان یوازې په سند ایالات کې پاتې دي او هغه هم تر ټولو ټیټه او بیوزله طبقه ده. په سند کې هندوان ولسي تحریکونو په برکت پښ او غلي ناست د حکومتي پالیسۍ له مخې دا هندوان لوړې دندې نشي اخستی او په ټولنه کې هم مساوي برخه نه ورکول کیږي. له دې حالته ددوی شتمنې او مسلکي طبقې کډه وکړه او له پاتې خلکو یې پاکستاني حکومت ویره نه احساسوي.

خو حکومت د هندوانو پر ضد حکومت، ټولنې او حکمرانو تر اوسه هم کمیونل جذبه د نصاب په کتابونو، تاریخي موادو او رسنیزو آوازو کې جاري ساتلې ده، په پاکستان کې شته سیکولر قوتونو هیڅ ډول قانوني ملاتړ نه لري، پخپل کمزوري وجود کمیونل ایزم مخالف کوي او له ډېرو ستونزو سره مخ کیږي، چې پکې د خیانت او د هند د جاسوسۍ تورونه هم شامل دي.

له هندوانو وروسته په پاکستانۍ ټولنې کې کمیونل یا د مذهبي بېلتون جذبې د عیسویانو پر وړاندې ښودل کیږي. پاکستانۍ ټولنې کې په ښکاره ډول عیسویان هېڅ یوې بلې طبقې ته له ټولنیز، اقتصادي او سیاسي پلوه خطر ندي، ځکه یو خو یې شمیر کم دی او بل یې منځنۍ طبقه دومره محدوده ده چې د دندو یا نورو امتیازاتو غوښتنه هم نشي کولای. دوی د نور عیسوي اکثریت په څېر په ټکنالوجۍ کې پرمختللي ندي او تر ټولو ټیټه او بیوزله طبقه ده، تر دې چې له تعلیمي اړخه هم تر ټولو وروسته پاتې دي.

ځکه د عیسوي مبلغینو ښوونځي هم د پاکستان د لوړې طبقې د بچو په خدمت کې دي او پوځیان، مامورین او سیاسیون روزي؛ د عیسویت پر ضد د فساد او شخړو خبرې د نورو لاملونو له امله کیږي او د سیاسي، اقتصادي او ټولنیز اړخ په پرتله یې اروایي اړخ ډېر وي.

زموږ په ټولنه کې د کمیونل یا جلا مذهبي اوسېدلو یو لامل دا دی چې دلته اکثریت مسلمانان دي او د نورو مذهبونو اقلیتونه کم دي. هغوی یې، له اکثریت سره سیاسي، کلتوري او اقتصادي اړیکې نه لري، د لېرې والي او ناپوهۍ له امله په دوی کې د نورو مذاهبو په اړه شک پیدا کیږي، د هغوی له رسمونو او رواجونو ناخبره وي... دا جذبې یې رسنۍ او د نصاب کتابونه لا ډېرې راپاروي، دوی فکر کوي چې د نورو مذهبونو پیروان بل ډول انسانان دي او موږ سره هېڅ ګډ ارزښتونه نه لرو، همدا فکر یکې پردیتوب او یوازې والي زیاتوي.

دا خبره پرلپسې کیږي چې پاکستان د اسلام او مسلمانانو لپاره جوړ شوی دی، دا په دې مانا شوه چې د نورو مذهبونو خلک پکې هیڅ برخه نه لري. مثلاً څو ځله داسې ویل شوي چې د نورو مذهبونو اقلیتونو د پاکستان په تحریک کې څه ونډه نه ده لرلې؛ نو هېڅ ډول حق هم نه لري.

د ضیاالحق په وخت کې مذهبي اقلیتونو ته د جلا ټاکنو حق ورکړل شواو له سیاسي بهیره یې بیخي جلا کړل. دوی رایو ته هیڅ اړتیا نه وه، ځکه دوی یوازې د خپلې ډلې نوماندانو ته رایې ورکولای شوای، دې سره یې سیاسي اهمیت هم ختم شو. بیا چې د (توهین رسالت) قانون جوړ شو، عیسویان یې لا پسې کمزوري کړل، ځکه ددې قانون له مخې خلکو له عیسویانو څخه ذاتي بدل واخیست او د خپلو شخصي ګټو لپاره یې دوی وځورول. دې قانون دوه لاملونه لرل، یو خو په ۱۹۸۰ ز کال کې بې شمیره

مذهبي ډلې راپيدا شوې،چې له مذهبي احساساتو پرته يې نوره هيڅ اجنډا نه لرله. د ځان مشهورولو او منلو لپاره يې له هغو مسايلو ګټه واخيسته چې د خلکو له مذهبي احساساتو سره ٥ يې اړيکې لرلې. د بېلګې په ډول د قرانکريم بې حرمتي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته سپکاوی. او نور... . عيسويان ځکه په نښه شول چې له سياسي اقتصادي او ټولنيز اړخه کمزوري وو. دويمه دا چې دې مذهبي ډلو قانوني او حکومتي ملاتړ درلود او د ځينو آوازو په مرسته يې د ولس خواخوږي هم ترلاسه کړې و، په دې توګه مذهبي ډلې دومره قوي شوې وې چې له خلکو يې چانده اخيسته او د حکومت له زکات فنډ څخه خپله برخه بېله ترلاسه کوله، ترڅنګ نورو مسلمانو هيوادونو هم مالي مرستې ورسره کولې.

پاکستانی ټولنه په امريت او کنټرول شوي جمهوريت کې دومره بنده ده چې د خپلو احساساتو د څرګندولو هېڅ موقع نه لري، کومه مذهبي موضوع چې رامنځته شي، دوی په کميونل يا مذهبي شخړو کې چور، ورانی، وژنې، بې عزتي او نور پېل کړې چې دا ټول ددې احساساتو د ښکاره کولو لارې دي.

په دې شخړو او مذهبي جذبو کې د تيزۍ يو پايله دا شوه چې د پاکستان په عيسوي طبقې کې يې نوی سياسي شعور رامنځته کړ يانې تر څو ټوله ټولنه سيکولر شوي نه وي؛ مذهبي کرکه نه ختميږي. ددې څرګندونه د عيسوي ډلو او ګوندونو په رسالو او ليکنو کې ليدل کيږي. په ځانګړي ډول ددوی ځوان نسل له سياسي پلوه متحرک شوی دی او خپل تحريک د پاکستان له سيکولر خلکو سره نښلوي.

(۴)

له کمیونل ایزم وروسته بیا د فرقه واریت دویم ډول سیکتیرین ایزم دی، چې په هر مذهب کې دننه بېلابېلې ډلې راپېدا شي، لکه د ونې چې ریښې او ډېر یو وي؛ خو څانګې یې سره بېلې شوې وي. د نړۍ ټول مذهبونه تل په یو حالت نه پاتې کیږي، حتمن یې په پیروانو کې اختلاف پیدا کیږي، چې د (تفرقه) کلیمه ورته په منفي مانا کارول کیږي. دا د ماتولو او جلا کولو په مانا ده. له دې امله فرقه یا ډله په هیڅ یوه مذهب کې ښه نه ګڼل کیږي، ځکه هر مذهب ماتوي او په برخو یې ویشي.

خو فرقې د مذهب د خپراوي او د وخت له بدلونونو سره رامنځته کیږي، هر مذهب چې له خپلې خاورې ووځي او نورو سیمو ته لاړ شي؛ نو له رواجونو، کلتور او عادتونو سره بدلیږي. په همدې ډول چې وخت بدل شي او نوی حالات راشي؛ نو ورسره په مذهبي زده کړو کې هم بدلون راځي او نوي تاویلونه او تشریحات ترې کیږي. د مذهب نوې تشریح ځینې خلک مني او ځینې نور یې نه مني. له دې امله دا اختلاف د فرقو په بڼه رامنځته شي او د هرې فرقې یا ډلې پېروان پرخپلو عقایدو کلک وي. هغوی چې بنسټیز تعلیمات مني، دا فرقې باغي او خارجي ګڼي او دا تور پرې پورې کوي، چې اصلي تعلیمات یې پرې ایښي او مذهب د خپلې خوښې او ګټې له مخې تشریح کوي چې دا له مذهب سره غداري ده. نوې فرقې اقلیتونه رامنځته کوي، دا چې د اکثریت له غوسې او تاو ... بخوالي نه خوندي وي؛ نو ځان په یوې دایره کې بند ساتي او پرخپلو

پیروانو ناسې بندیزونه لګوي، چې ددوی له ډلې څخه د وتلو هیڅ توان ونه لري. له دې امله د مذهب په اصلي وجود او څانګو کې جلا والي او اختلاف رامنځته شي او پر دې سربیره که په یو مذهب کې څو ډلې وي؛ نو د بېلابیلو مذهبي عقایدو له امله په دوی کې اتحاد او یووالی نشي رامنځته کیدای او هره ډله هڅه کوي چې پر بلې ډلې تور پورې کړي.
عیسوي ټولنه هله د فرقه واریت په جګړو کې ښکیل شوه چې مارتن لوتهر، کاتولیک کلسیا وننګوله او له امله یې پروټسټنټ (معترضه) فرقه رامنځته شوه. که څه هم په عیسویت کې له مخکې ډېرې ډلې وې؛ خو له کاتولیک کلیسا بېلتون او د نوو ډلو د رامنځته کېدلو تر شا سیاسي او اقتصادي عواملو کار کاوه. دا د اروپا په تاریخ کې یوه مهمه پېښه شوه. دا اختلاف هله زیات شو چې پروټسنټ او کاتولیک کلیساګانو د بېلابیلو حکومتونو ملاتړ ترلاسه کړ. مثلاً فرانسه کاتولیک پاتې شوه او حکومت یې د پروټسټنټ یا معترضینو خلاف شو. د انګلستان حکمران پروټسټنټ شو او هلته د کاتولیک فرقه دښمنه شوه. په شپاړسمې پېړۍ کې اروپا له فرقه ایزو جګړو ډېره اغیزمنه شوه. د فرانسې ټولنه ددې جګړو له امله ماته شوه. (ایچ ای ایل فشر) د اروپا په تاریخ کې لیکلي، فرقه ایزو جګړو د فرانسې هغه یووالی مات کړ، چې په ترلاسه کولو یې پېړۍ پېړۍ اوښتې وې. یو ښار د بل ښار دښمن شو، کورنۍ له کورنۍ سره ورانه شوه، چور، غلا، جګړې او ورانۍ د ورځنۍ ژوند برخه وګرځېده. په مذهبي جګړو کې ځینې خلک د مذهبي جنون له امله وژل کیدل او ځینې نور یې بیا د شخصي دښمنۍ له امله. ځینې یې بیا د ترهګرۍ له امله بې دلیله مړه کېدل. ټوله فرانسه په اور کې سوځېدله او غمیزه دا و چې پوهې او د اخلاقیاتو پیروې طبقې یې یوازې سېل کاوه. دا فسادونه هغه وخت لا تیز شول چې د ۱۵۲۷ زکال د اګست په ۲۴ مه نیټه د

سینټ بار تهولو میو (Bartholomew) په ځای کې پروټیسټنټ یا
متعرضین عام ووژل شول او ټوله فرانسه یې ولړځوله.
د همدې فرقه ایزو تاوتریخوالو پایله وه چې معترضینو خان ناخوندي
وګاڼه او له فرانسې یې کډه وکړه، ډېر شمیر یې د اروپا نورو هیوادونو ته
لاړل او هتله مېشته شول. ددې کډوالۍ له امله فرانسه له لاسي
کسبګرو، صنعتکارو او نورو هنرمندو خلکو بې برخې شوه. دا خلک چې
هرځای ته تلل هلته به ټولنې ددوی له کاره ګټه اخیسته. دې حالت ته
په کتو د فرانسې حکومت وغوښتل چې د فرقه ایزو جګړو مخه ونیسي او
ددې لپاره یې په ۱۵۹۸ ز کال کې ځینې قوانین جوړ کړل چې له مخې
یې په فرانسې کې پروټیسټنټ ډلې ته مذهبي ازادي ورکړل شوه، بشاري
حقونو مساوي شول او قضایي مصونیت ورکړل شو. د فشر کې په وینا دا د
انساني تهذیب او ارتقاء یوه مهمه پېښه وه، ځکه ددې قوانینو له مخې
شونې شوه، چې په یوه سیاسي نظام کې دوه یا له دوو زیاتې مذهبي
فرقې برخه ولري.
دې قوانیو په فرانسوې ټولنه اوږدې اغېز وکړې، سیاسي استحکام
رامنځته شو، په کسب او صنعت کې پرمختګ وشو او د دواړو فرقو یو
ځای کېدو ټولنې ته نوی قوت ورکړ، چې پر مټ یې فرانسې له نویو
رابرسیره کېدونکو ستونزو سره مبارزه وکولای شوه.
خو اروپا له فرقه ایزو جګړو خلاصه نه شوه، له ۱۶۱۸ - ۱۶۴۸ ز پورې
جرمني تر ۳۰ کالو مذهبي جګړې رواني وې. دې جګړو په جرمني یا
المان کې بزګر له ډیرو ستونزو سره مخ کړي وو، هغوی له داسې خفګان
او درده تیر شول چې له ذهني او اقتصادي پلوه یې وروسته پرېښودل.
ددې جګړو له امله دومره لوږې او قحطۍ سره مخ شول چې د انسان
غوښې خوړلو ته اړ شول . جګړې داسې اور خپور کړ چې کلي وسوځېدل،

دومره وحشت او بربریت خپور شو چې د اخلاقو او انسانیت نوم اخیستونکي خلک له منځه لاړل. دې جګړې د مادي وسایلو د له منځه وړلو تر څنګ په شپاړسمې پېړۍ کې د جرمني جوړ کړی کلتور هم له منځه یووړ. جګړه چې ختمېده؛ نو جرمني هم ورسره له هنر، ادب او کلتور ه خلاص شوی و، چې بیرته راجوړېده یې ډېر وخت ونیوه.
المان له دې یو سبق زده کړ، په ۱٦۴۸ ز کال کې چې امنیت شو؛ نو داسې هر اړخیزې پرېکړې وشوې، چې فرقه ایزې جګړې یې ختمې کړې.
فرقه ایز احساسات او اختلافات هله کمزوري شول چې په ۱۷۸۹ ز کال کې د فرانسې تر انقلاب وروسته، حکومت هیڅ ډول مذهب خپل نکړ او فرانسوي ټولنې کې ټولو فرقو ته مساوي حقونه ورکړل شول. په ۱۸۲۹ ز کال کې انګلستان پر کاتولیک کلیسا بندیزونه ختم کړل او په ټولنې کې مساوي حق ورکړل شو. له دې وروسته چې د اروپا په جمهوري او قانوني ادارو کې بدلونونه راغلل. ادارې سیکولر شوې او قانون ټولو فرقو ته مساوي حقونه ورکړل، دې قانوني حقونو د فرقه واریت په ختمولو کې مرسته وکړ ه او اروپایي ټولنه له دې تضادونو نه خلاصه شوه.

(۵)

فرقه واريت که د کميونل ايزم په نه وي، که د سيکټيرن ايزم خو د ټولنې يو والى او اتحاد له منځه وړي. فرقه ايزې جذبې د يو بل په مقابل کې دومره حد ته رسيږي، چې په کرکې، تعصب او جګړو اوړي. انسان د انسان پر شېطان اړوي، چې بيا د هغه ختمول او له منځه وړل د عقيدې يو برخه ګرځي. دا نفرت چې نرمي، برداشت، زغم، رحم او زړه سوى ختم کړي؛ نو ټولنه د بربريت او وحشت ښکار کيږي. په داسې ټولنې کې ادب، هنر، موسيقي او نور هنرونه خپل هنريت او لطافت له لاسه ورکوي. د نفرت له چاپيرياله د کمزورو فرقو او مذهبي اقيلتونو پوهان او لوی خلک کډې کوي او نورو هيوادونو ته ځي، چې له امله يې ټولنه لاپسې وروسته پاتې کيږي. د فساد له امله په ټولنې د اورايي فشارونو ترڅنګ نور مالي زيانونه هم راځي. له اروايي پلوه چې کله انسان وژنې او چور وګوري؛ نو په انسانيت يې باور ختم شي او د دنيا په اړه منفي فکر پيل کړي، چې له امله يې بيا يوازې نهيلي او خفګان رامنځته کيږي. هغه خلک چې په دې شخړو کې وژل کيږي کورونه يې ورانيږي په مقابل کې ورته هيڅ ډول معاوضه او بدل نه ورکول کيږي.

اجرايه ادارې چې په فساد کې ښکيل شي؛ ظلم او تاوتريخوالی پکې رامنځته شي، د ټولنې هر غړی مجرم ګڼي او بد چلند ورسره کوي. ددې فسادونو يوه مهمه ځانګړنه دا وي چې ښځې پکې تر هر چا ډېرې د بربريت ښکار کيږي، د هغې حيا ترې تروړ ل کيږي او په ټولې ټولنې کې

بې عزته کیږي. په عام ولس کې حتی د ښځې د وجود په اړه منفي افکار او کرکه پیدا کیږي. ( په اوسني دور کې په بوسنیا کې داسې کیږي. ښځې د کمیونل ایزم له امله په ډېرې بې دردۍ د هوس قرباني کیږي). د تاریخ له لوستلو دا څرگنده ده چې فرقه ایز فسادونه ټولنه بربادوي. شاته یې پرېږدي، تخلیقي او ذهني وړتیاوې یې له منځه وړي، ټولنه په اصلي مانا له منځه وړي او د غړیو ژوند بې مانا کوي.

په کومو هیوادونو کې چې فرقه واریت ختم شوي، هلته حکومت سیکولر شوی دی، حکومت چې سیکولر شي، ټولنې کې هرې ډلې او فرقې ته د جمهوري قوانینو په رڼا کې په مساوي نظر لیدل کیږي او برابر حقونه ورکول کیږي. د سیکولر کېدو یوه پایله دا هم شوه چې د هیواد سیاسي، کلتوري، اقتصادي او اخلاقي ارزښتونه هیڅ کله له مذهب سره په ټکر کې رانغلل، چې له امله یې مذهب له حکومت جلا شو او خپل ځان یې پخپله په منظم ډول وساته؛ خو د هند په اړه مورګورو چې یوازې د حکومت سیکولر کېدل بسنه نه کوي، ددې لپاره چې ټولنه له کمیونل ایزم ازاده شي، باید د حکومتي ادارو تر څنګ له نورو لارو او وسایلو هم کار واخیستل شي.

# ښځې او فرقه واریت

په ورځپاڼو کې چې موږ د فرقه واریت د فساد په اړه لولو؛ نو ښځه پکې تر ټولو نورو ډېره د ظلم او ستم ښکار شوې ښکاري. دلته پوښتنه راولاړیږي چې ولې ښځې د نورو په پرتله د فساد ډېره ښکار کیږي ؟ ددې ځواب د موندلو لپاره باید تر هر څه دمخه په ټولنې کې د ښځې حیثیت او مقام وګورو او دا باید ښکاره کړو چې په ټولنې کې ښځه د نر په پرتله له ټولنیزه اړخه کمه ده که مساوي ده؟ ددې حیثیت کم دی؛ نو په اصل کې دا یو کمزوری جنس دی او په دې حالت کې نه یوازې فرقه ایزو شخړو کې بلکې په ټولنې کې د نورو پېښو او ستونزو امله هم ددې عزت خوندي نه وي.

دا یو حقیقت دی چې اوس په ټولو ټولنو پلرنی نظام واکمن دی، چې له امله یې تراوسه ښځې له نر سره مساوي درجه نده ترلاسه کړې. دا نظریات په ځانګړي ډول په ختیځو هیوادونو کې ډېر زور او عملي دي چې مذهب، ټولنیز چلند، ټولنیز فعالیتونو او اروایي اغېزو قوت ورکړی دی. خو د ښځې په واک کې ساتلو لپاره تر ټولو ښه او اغېزناکه وسله (تاوتریخوالی) دی. هر وخت چې ښځه غواړي له ټاکل شوې دایره قدم بهر کړي؛ نوسخته وځپل شي او بېرته خپل ځای ته راکش شي. ګورو چې زموږ ټولنې کې ښځه له کوره راووځي، غږونه ورپسې کیږي، بدې خبرې ورته کیږي او په دې وېرول کیږي چې بهرنۍ نړۍ ورته له خطره ډکه ده او باید بېرته په کور کې پناه واخلي. لکه له ژوبڼه چې کوم خطرناک ژوی

وتښتي، بېرته په زور راوړل شي او پنجرو کې بند شي. ددې ذهنيت
ځرګندونه څو ځله زموږ په پوهنتونو کې هم شوې ده.د ښځينه
محصليونو پرمخ تيزاب شيندل شوي دي، چې ښوونيزو ادارو ته بې پردې
رانشي. ددې تر شا يو دليل د ښځينه محصليونو وړتيا هم ده. هغوی ډېر
درس وايي او په ازموينو کې لوړې نمرې اخلي او ځينو سياليو کې له
نارينه و څخه مخکې کيږي، ددې سيالۍ د مخې نيوي او ماتې ورکولو بوه
لار دا ده چې ښځينه محصلينې ووېرول شي او په ښوونځيو او پوهنتونو
کې د ناخوندیتوب احساس وکړي.
د ښځو ځپلو او په خپل واک کې ساتلو لپاره په ټولنې کې تاوتريخوالی
زياتيږي. په دې تاوتريخوالي کې کورنی تاوتريخوالی هم راځي. چې
خاوند يکې خپله ښځه وهي او ګواښي. دا ټول ځکه کوي چې دده خبره
ومني او په واک کې يې پاتې شي. ټولنه ددې تاوتريخوالي په اړه هيڅ
غبرګون نه ښايي. ددې تاوتريخوالي ځرګندونه داسې هم کيږي چې يو
خاوند خپله ښځه په معمولي او بې بنسټه شک ووژني او نورې ښځې له
دې عبرت واخلي. زياتره ټولنو کې داسې وژنې انصاف ګڼل کيږي او
ستايي يې.
ګورو چې پلارنۍ ټولنه کې ښځه له هرې ممکنې لارې خپل کيږي او
ذليله کيږي چې منونکې شي. له بلې خوا ښځه د نر ملکيت وي او د
همدې ملکيت له امله يو شخصی (شی) يا توکی ګڼل کيږی. لکه څنګه
چې ملکيت يا شتمني د يو کس برخه ګرځي همدارنګه د ښځي شخصيت
هم د نر په شخصيت کې ورکيږي. که څوک دې ملکيت ته ګوتې نږدې
کوي، خوروي يې يا يکې کومه بدې ګوري؛ نو خاوند ورته خپل سينه سپر
کوي، ځکه دا خپل وقار غيرت او عزت ګڼي.
پداسې حالاتو کې چې کله په کومې ټولنې کې فرقه ايز فساد شته وي؛
نومخالفې ډلې يا فرقې هڅه کوي چې خپلې سيالې فرقې ته ډېر زيان ور

واړوي. چې کمزورې شي او له مقاومته ولوېږي. په دې شخړو کې د ملکیت یا شتمنۍ له منځه وړل او ورته زیان رسولو ته ډېره هڅه کېږي. ددې یوه بېلګه په ۱۹۹۸ ز کال کې د انډونیزیا شخړې دي چې یکې د چینایي استوګنو املاکو ته اور ورته شوکړل، چې له اقتصادي اړخه کمزوري وي.[۱]

بل ډول یې دا وي چې غواړي مخالفه ټولنه په اخلاقي او اروايي ډول وځپي، د هغوی په ښځو تېری کيږي چې غيرت او عزت ته يې زيان واوړي. ټولنه چې فرقه واريت له اقتصادي، اخلاقي او اروايي پلوه وځپي، نو ماته وخوري او نورو خلکو ته د عبرت يو تصوير شي. همدا لامل و چې په انډونيزيا په شخړو کې د زرګونو چينايي ښځو عزت ترې واخيستل شو، دا کار ددې لپاره وشو چې چينايان خپله هر اړخيزه کمزوري ومني او مات شي.

بله بېلګه په بوسنيا کې فرقه ايزه جګړه وه، چې پکې سربيانو د بوسنيا په مسلمانو ښځو تېری وکړ او بيا يې تر هغه وخته په بند کې وساتلې چې اميداورې شوې. د هربنس مکهيا په خپلې يوې ليکنې Communal Violence and Transmutation of Identities کې ليکې، فرقه ايزې جګړو کې جنسي تيري ددې لپاره کيږي، چې يوه ډله خپلې مقابلې ډلې

---

[۱] *زمونږ مشران وايي، پخوا زمونږ په ټولنې هم داسې رواج و، چې کسبګره طبقه به پرمختګ ته نه پرېښودل کېده. د بېلګې په ډول که د کلي نايي به شتمني پېدا کړه، نو ټولو کليوالو به په شريکه د نايي کور او شتمنۍ ته اور اچوه، چې هغه پرمختګ ونه کړي. ځکه که يې پرمختګ کړی وای؛ نو له دوی سره وېره وی چې بيا به ددوی خدمت څوک کوي؟ ددې لپاره په لوی لاس هڅه کېدله چې کسبګره طبقه په ټولنه کې له اقتصادي او اروايي دواړو اړخونو وځپل شي. که څه هم اوس به د اقتصادي ځپلو ښکاره پېښې نه وي؛ خو ځينې کسبګر اوس هم زمونږ په ټولنې کې له اروايي پلوه ځپل کيږي او د نورو اوسيدونکو په څېر ټولنيز مقام نه ورکول کيږي - ژ

ته د کمزورۍ احساس ورکړي او دې ته یې متوجه کړي چې حتی هغوی له دوی څخه خپل عزت هم نشي ساتلای. په اندونیزیا، بوسنیا، پاکستان او هند کې د فرقه ایزو شخړو په لړ کې داسې پېښې هم وشوې چې ښځې د خپلو خاوندانو په مخ کې لغړې شوې او بیا پرې جنسي تیری وشو. په دې کار دوی خپل نرتوب او زړورتیا ونښودله او په مقابل لوري پورې یې خندا وکړه. داسې پېښې هم شوي چې ښځې له جنسي تیري وروسته لوڅې گرځول شوي او وروسته بیا د مخالفې ډلې د کور ته مخ ته غورځول شوي، چې هغوی ترې خپل ذلت احساس کړي.

غمیزه دا وه چې کله به مقابلې ډلې یا فرقې ته موقع په لاس ورغله؛ نو هغوی به همدا کړنې تکرارولې او څه چې به ورسره شوي وو، هماغه به یې بیرته له خپل مقابل لوري سره کول.

په فرقه ایز فساد کې له یوې خوا ښځې د تاوتریخوالي ښکار شوې او له بلې خوا بیا همدا ښځې د مقابل لوري د نفرت د زیاتولو لپاره هم کارول کیږي. لکه د هر فساد په وخت کې به غږ کېده چې د یوې فرقې خلک دې سره متحد او جگړې ته چمتو شي څکه ددوی د ښځو عزت او عفت خوندي ندی. پداسې حالاتو کې ښځې هم مېدان ته راځي او د خپل نرانو نارینتوب ننگوي، په هرې پلارنۍ ټولنې کې د نارینتوب ننگول د عزت د ننگولو په مانا دي. له دې امله ښځې په مستقیمه او غیر مستقیمه توگه د فرقه ایز فساد د زیاتولو او تریخولو لپاره کارېدلي دي.

د پخواني هند په تاریخ کې تر ټولو وېروونکې شخړه په ۱۹۴۷ز کال کې وشوه، چې د دواړو فرقو خلکو سره یو بل (عام ) ووژل. شتمنۍ یې چور کړې او ښځې یې د خپل هوس قرباني کړې، په ځینو حالاتو کې ووژل شوې او په ځینو نورو کې یې بیا د وینځو په توگه خپلو کورونو کې وساتلې. په دې فسادونو کې چې پر ښځو څه تیر شوي دي هغه تر ډېره په تاریخ کې ندي خوندي شوي، ددې د خوندي کولو اړتیا څکه شته چې

له همدې څخه د ښځو د ونډې او د نر د شخصیت او کردار ښکارندوبې کیږي. ښځو چې د هیواد د وېش لپاره کومه قرباني ورکړې هغه به احساس شي او مقام به یې د ښکته کیدو پرځای پورته لاړشي. کیدای شي همدا لامل به وي چې په دې اړه ډېر کمه څېړنه شوې او هغه هم د ښځو له خوا شوې ده.

پاکستان کې اوسنی فرقه ایزې شخړې مذهبي بنسټ هم لري او ژبنی هم؛ خو په دواړو صورتونو کې فساد سره ورته دی او هڅه پکې همدا کیږي چې مخالفه ډله له سیاسي، اقتصادي، ټولنیز او اخلاقي پلوه ټیټه ثابته کړي.

که څه هم د فرقه ایز فساد تاریخ بشپړ ندی؛ خو کوم چې شته همدا ترې مالومیږي چې ښځې له بدني او اخلاقي پلوه ځپل شوي دي او پردې سربیره یې هم ښځینه ذات ډېر اغیزمن شوی دی. مثلاً کله به چې په فساد کې نر ووژل شو یا به معذور شو؛ نو د کور چلول به ښځې ته ورتر غاړې شول. له یوې خوا یې باید د کور خرڅ برابر کړی وې او له بلې خوا یې د نر په نشتون کې د ناخوندیتوب احساس ملګری و، په دې صورت کې یې باید له حالاتو سره مبارزه کړې وای.

له دې پرته په شخړو کې بې عزته شوې ښځې به له داسې اروایي عذابه تېرېدې چې تصور یې هم سخت دی. له یوې خوا به خپله پخپلو سترګو کې ذلیله شوه او له بلې خوا به ورته په ټولنې کې نور کوم احترام نه و پاتې او نه به ورسره چا خواخوږي کوله. دا ښځه به د نورو خلکو لپاره یو ژوندی عبرت وګرځېد چې د شرم او ذلت لامل به ګڼل کېده. پداسې حالاتو کې ښځو ته ځان وژنه، لیونتوب یا یو بې مانا ژوند تېرول پاتې کېدل. دا ټول هغه قیمت دی چې ښځه یې د نر د نارینتوب او لوړاوې لپاره پرې کوي.

# اسلام او د نوي دور غوښتنې

په عمومي توګه موږ لوی مذاهب په دوو ډولو موندلای شو: یو هغه چې یوازې تر شخصي ژونده محدود دي، فرد او ټولنه د عبادت او اخلاقي ارزښتونو پابندوي. دویم هغه مذهبونه دي چې د فرد او ټولنې په ټول ژوند خپور وي او د هغه هرې ستونزې او مسلې ته لارښوونه کوي. په لومړي حالت کې مذهب له ډېرو ستونزو او مسایلو سره نه مخ کیږي ځکه دایره یې محدوده وي، هر فرد پکې ازاد وي چې د مذهب پابندي کوي که یې نه کوي. خو په دویم صورت کې چې مذهب د انسان ټول ژوند رانغاړي او هرې ستونزې ته یې ځواب وایي؛ نو له ډېرو ستونزو او مسلو سره هم مخ کیږي. لامل یې دا دی چې ژوند په یو ډول نه پاتې کیږي. پرلپسې بدلونونه پکې راځي. په دې توګه ټولنه هر وخت خپل چوکاټ او جوړښت بدلوي. ټولنیزې، اقتصادي، سیاسي او کلتوري غوښتنې یې له وخت سره بدلیږي او نوې کیږي، د نویو غوښتنو بدلونونو او حالاتو سره مذهب هم باید بدل شي، پخوانۍ کلیمې نوې نوې ماناګانې اخلي، نوي تفسیرونه او تاویلونه پکې ورزیاتیږي په دې توګه ټولنې کې په مستقله توګه یو کش مکش رامنځته کیږي او پایله یې د پخواني او نوي ټکر وي. پخواني نظریات د ټولنیزو بدلونونو مخه نیسي او نوې غوښتنې یې غواړي پرمخ بوځي. همدا د مذهب لپاره تر ټولو لویه ننګونه ده، چې ایا دا دومره ګنجایش لري چې له وخت سره بدل شي؟ که نشي بدلېدای نو ددې او نویو غوښتنو تر منځ واټن زیاتیږي، تر دې چې کیدای شي

مذهب يې د حالاتو پر وړاندې بيوسه شي او ورو ورو تر ځانګړيو حلکو او ځايونو محدود شي.

يو وخت عيسويت دعوه کوله چې د ژوند د ټولو معاملاتو لارښوونه کولای شي، چې پوښتنې شول وخت ډېر تيز روان دی او عيسويت ورسره په هغه رفتار نشي تللای؛ نو مذهب د فرد تر شخصي ژوند پورې محدود شو او هدف يې دا وټاکل شو، چې د ولسي خدمت په مرسته ټولنه ښه شي، د فرد روحاني جذبې راوپارېږي او زړه يې تش شي. همدا نظريه د (بده مت) او (جين مت) هم ده چې ځانونه يې له سياسته جلا کړي دي.

په دې شاليد کې چې اسلام او د نوي دور غوښتنې لولو؛ نو مور ته په ډاګه کيږي چې هر څومره نوي ټولنيز، سياسي، اقتصادي، ساينسي او تخنيکي بدلونونه راځي، پر وړاندې يې د اسلامي ټولنې له لورې دوه ډوله غبرګونونه رامنځته کيږي. يو خو دا چې ددې نويو بدلونونو او غوښتنو ته له ذهني پلوه مدلل ځواب ورکړل شي او بل دا چې که يې ورسره وس ونه رسيږي او د حالاتو مقابله ونکړای شي؛ نو دننه مات شي او تاوتريخوالی ورسره پيل کړي. هر نوی شی بدعت وګڼي او جګړه ورسره اعلان کړي. دا غبرګون ولې کيږي؟ که دا وشنل شي؛ نو ليدل کيږي چې په ټولنې کې دوه ډوله عالمان دي: يو هغه چې په ديني مدرسو کې د ښوونکو تر څارنې لاندې روزل کيږي، ددوی د مدرسو په نصاب کې حديث شريف، فقه، تفسير او نور شامل وي او له دې پرته پکې نور کوم دنياوي موضوعات نه وي، لکه تاريخ، جغرافيه، بيولوژي، سياست، اقتصاد، طبيعي علوم او نور... په يو وخت کې دا نصاب ځکه ګټور و، چې فارغ کس ته به د قاضي، مفتي او نورې دندې ورکول کېدې، يا به جومات کې د خطيبانو او امامانو په توګه ګومار کېدل؛ خو اوس د مدرسو فارغين دا دوه لارې لري چې يا په جومات کې امام شي يا مدرسې کې استاد. له دې

پرته دوی ته په ټولنې بل کوم اسان او ګټور کار نشته، که څه هم ددوی اقتصاي وسایل محدود دي، خو په ټولنې کې اوس هم اثر او رسوخ لري، هر وخت چې عام وګړي ته کومه مذهبي مسله پېښه شي، نو د فتوی لپاره دوی ته رجوع کوي او پرېکړې یې مني.

بله ډله هغه اسلامي پوهان دي چې د اسلام د مقدس دین تر څنګ یې نور دینونه هم لوستي وي او د پوهنتون نصاب یې له مدرسو سره توپیر لري. د مذاهبو په اړه نوې څېړنې، ټولنیز علوم او نوي نظریات ددوی ذهن پراخه کوي او پخوي یې. که دوی دا موقع پیدا کړي چې د اروپا په یوه پوهنتون کې زده کړې وکړي؛ نو د هغه ځای له زده کړو ښه ګټه پورته کولای شي. د عصري علومو او نویو نظریاتو په مرسته هغه دا ورتیا پیدا کوي چې مذهب پر ساینسي بنسټونو تفسیر کړي او دفاع ترې وکړي.

خو مسلماني ټولنې کې ددې دواړو ډولو مذهبي عالمانو په اړه یو نظر شته دی، دوی په هغو مذهبي عالمانو باور کوي چې په مدرسو کې یې درسونه ویلي وي، ددې په مقابل کې هغو عالمانو ته د شک په نظر کتل کیږي چې عصري زده کړې یې کړې وي. زیاتره یې بهرني جاسوسان ګڼي چې غواړي اسلام له دننه کمزوری کړي، ددې یو مثال په پاکستان کې فضل الرحمن دی، چې د اسلام اباد د اسلامي څېړنو د مرکز مشر و. که څه هم دا له یوې عالمې کورنۍ څخه و او خپله د عربي ژبې لوی عالم و؛ خو دا چې له اکسفورډ پوهنتون څخه یې سند اخیستی و او له لویدیځو مستشرقینو سره یې اړیکې لرلې؛ نو له عامو علماو څخه یې جلا کړی و. تر دې چې پر (اسلام) نومي کتاب یې د ایوب خان په وخت کې شخړه رامنځته شوه او دی اړ شو چې پاکستان پرېږدي او د مرګ تر وخته د شیکاګو په یوه پوهنتون کې د ښوونکي په توګه دنده ترسره کړي. په اسلام د هغه څېړنې نن په اروپا کې لوستل کیږي؛ خو په پاکستان یې کې

لا نوم ورک دی.

ددې نویو علماو یوه ستونزه دا ده چې د څېړنې لپاره اروپايي ژبې ناکې، چې له امله يې دوی په يوې محدودې دايره کې پاتې کېږي او افکار يې نه عامیږي. ځايي علماء په ځايي او عامه ژبه ليک کوي، خلک يې له لوسلو خوند اخلي، پرې پوهيږي او افکار يې په عامو خلکو کې ښه خپرېږي.

د مذهب په تاريخ کې داسې ډېرې دورې راغلي چې د خپلې بقا او استحکام لپاره له بېلابېلو چيلنجونو سره مخ شوی دی،چې يو يې په برصغير د استعمار دور و. په دې دور کې مسلمانانو ته داسې هيڅ امکانات نه وو پاتې چې په مرسته يې دوی د شته سياسي واک سره مبارزه کړې وای او د جنګ په مرسته يې بهرنی استعمار ګر قوت مات کړی وی. د خپل مذهب د ساتنې یوازينی لار دا وه چې له ذهني پلوه له دننيو او بهرنيو ستونزو او ننګونو سره مبارزه وکړي. سرسيد احمد خان او ملګرو يې دا کار په ډېر ښه ډول ترسره کړ، دوی په اسلام د مغربي نقد ځواب په عقلي دلايلو ورکړ او په دې توګه يې د اسلام يو ترقي پسند او ليبرال تفسير نړۍ ته وړاندې کړ.

ددې په مقابل کې د ديوبند مدرسې د اسلام روايتي او پر راسخ العقيده ګۍ ولاړه نظريه لرله او دفاع يې ترې کوله. دا دوه نظريې د هند تر وېشل کېدو په مسلماني ټولنې کې موجودې وې، خو په ۱۹۴۷ ز کال کې چې پاکستان رامنځته شو؛ نو هغه ټول مذهبي ګوندونه چې د پاکستان مخالفت يې کاوه؛ په دې بوخت شول چې د نوي هيواد واک ترلاسه کړي او شريعت نافذ کړي. په دې سياسي منډو ترړو کې د مذهب د دفاع ذهني هڅې کم رنګې شوې او مذهب د سياست د ترلاسه کولو لپاره وکارېده. په استعماري دور کې سرسيد، مولوي څراغ علي، او سيد امير علي دا هڅه کړې وه، چې مذهب له سياسته جلا کړي او د ذهني تخليق

په مرسته یې دفاع وکړي. دا دفاع په ښه او علمي صورت وشوه، له امله یې د اسلام او جدیدت (مدرنیزم) ترمنځ شته تشه تر یوې اندازې ډکه شوه او هڅه وشوه چې تر منځ شته واټن یې راکم شي.
تر وېش وروسته یوه بېلګه شته، چې غلام احمد پرویز بې له کومې سیاسي موخې او ګټې اسلام د نویو غوښتنو له مخې تفسیر کړ، په ۱۹۶۰ مې لسیزې کې په ځوانې باسواده طبقې کې ډېر مهشور شو. دا هغه وخت و چې ځوانو محصلینو د امریکا او اروپا په پوهنتونونو کې له راډیکال افکارو اغېزمن شوي وو او د اسلام داسې یو تفسیر یې غوښته چې له بدلېدونکو حالاتو سره سم وي. دا وخت له دې امله هم مهم و چې پاکستان کې د صنعتي دور پېل و، چې ورسره د ټولنې په جوړښت کې بدلون راته او کړه وړه هم ورسره بدلېدل. خو دا حالات چې بدل شول او د ذوالفقار بهټو جاګیردار جمهوریت راغی؛ نو په ټولنې کې مذهبي روشنفکری او پرمختګ ته هېڅ ځای پاتې نشو او راسخ العقیده ګي لا پسې پیاوړې شوه.
اوس په پاکستانی ټولنه کې روایتي او سخت دریځو عالمانو ټولنه انحصار کړې ده. روڼ اندي او عصري دیني عالمان خو اول نشته، بیا که د ګوتو په شمیر پیدا هم شي؛ نو اغېز یې محدود وي. پاېله دا ده، چې په نړۍ کې بدلونونه راځي، د نړیوالتوب یا ګلوبلایزیشن له امله ورځ په ورځ نوي تحولات کیږي او زموږ عالمان ترې بې خبره پاتې کیږي. لامل یې دا دی چې ددوی ذهن محدود پاتې شوی او په لوی لاس نه غواړي چې له نړۍ سره بلد شي. دوی ته په دې ټول بهیر کې یوازې یو د (کلتوري یرغل) اړخ ښکاري او ډېر خطرناک یې هم ګڼي او پر ضد یې جهاد کوي. له هنرونو سره یې دښمني ورځ تر بلې سختیږي. په لویدیځ تهذیب کې ورته یوازې عیاشي او اخلاقي فساد ښکاري او دا فکر کوي چې له کلتوره

خپله مسلمانه ټولنه څنګه ځوندي وساتي؟ دوی له لویدیځ کلتور سره نابلده وي، لوستی یې نه وي، نظر پرې نه لري، هر اړخیز مالومات یې کمزوري؛ نو ځکه ورته عقلي خواب هم نشي ویلای او نه یې په مقابل کې خپله ټولنه له ذهني اړخه روزلای شي. دوی غواړي چې خپله مسلمانه ټولنه له دوو لارو وساتي: لومړی یې له الهی قهر او غضب وویروي او ورته وایي که لویدیځ کلتور مو خپل کړ؛ نو پایله به یې ډېره بده وي او په اخرت کې به یې سزا درکول کیږي. دویمه لاره دا ده چې خلک وویرول شي، وځپل شي او خوف پکې پیدا شي. ددې موخې لپاره مذهبې ډلې د ځوانانو داسې ګروپونه لري چې دوی تل په هوټلونو، تفریح ځایونو او نورو عامه ځایونو حملې کولو ته چمتوي وي، چې هلته خلک وویروي. په پوهنتونو کې داسې ګروپونه وي، چې هلکان او انجونې سره نږدې کېدو ته نه پرېږدي. د کلتور په ساتنې کې تر هر چا ډېرې ښځې او انجونې اغېزمنې کیږي، ددوی لباس، ژوند او کره وړه څارل کیږي. پداسې وخت کې ټول اسلامي ګوندونه په حکومت فشار راوړي، چې ښوونیز نظام دې اسلامي شي. که څه هم دا ګوندونه ټاکنې نشي ګټلای؛ خو د خپل فشار په مرسته راتلونکی حکومت اړباسي، چې ددوی اسلامي اجنډاوې ومني او عملي یې کړي، حکومتونه هم د خپلې ګټې لپاره دا ګوندونه موقتي خوشاله کوي او ددوی په خوښه ځینې اصلاحات کوي. له دې امله زموږ په ټولنې کې د مذهب ظاهري بڼه راڅرګندیږي؛ لکه هر وخت چې یو ګوند حکومت جوړ کړي؛ نو وزیراعظم ، ولسمشر او ټیم یې ټول عمرې ته لاړ شي او بیا یې په رسنیو کې اعلان کړي. بله یو رواج دا دی چې هره غونډه د قرانکریم په تلاوت پیل کیږي. په هوایي سفرونو کې د سفر په پیل کې دعا کیږي، ځینې نور ختمونه، عرسونه، د نعت خوانۍ غونډې او نور کارونه یوازې ددې لپاره کیږي، چې واکمن ګوندونه خلکو ته ځان ښه

او پاک وښايي؛ که څه هم د پردې تر شا ټولنه د فساد او بې کفايتۍ ښکار وي. په پاکستانۍ ټولنې کې ټل په داسې فسادونو د مذهب پرده اچول کيږي او کوشش کيږي چې خپلې شته نيمګړتياوې د مذهب په پرده کې پټې وساتي؛ چې همدا کار وروسته بيا پر منافقت بدليږي.
د هند او پاکستان تر وېش وروسته دوه مذهبي ليوالتياوې راڅرګندې شوې. په هند کې مسلمانان اقليت دي او نشي کولای چې واک ترلاسه کړي. څکه اوس د فتوحاتو دور ختم شوی دی او واک ته د رسېدو يوازينۍ لاره ټاکنې دي، چې پکې اقليت د اکثريت پر وړاندې حکومت نشي جوړولای. له دې امله په هندي ټولنې کې دوي ته دوه لارې پاتې دي: يا دوی بايد د خپل مذهب د ساتلو لپاره له هندي ټولنې بېل شي او جلا ژوند وکړي. يا دويمه لار دا ده چې ټولنې کې ګډ ژوند وکړي او خپل مذ هب د هندي ټولنې له اړتياو او بدلونونو سره سم تشريح کړي. په دې لړ کې دوه بېلګې ورکول کيږي: مولانا وحيدالدين خان او انجينر اصغر علي دواړه هغه عالمان دي، چې د اسلام عصري او روڼ اندې نظريه وړاندې کوي؛ خو د انجينر اصغر علي ستونزه دا ده چې په مسلکي لحاظ انجينر دی. وروسته يې بيا عربي زده کړې، اسلام يې ژور مطالعه کړی دی، ماخذونه يې لوستي؛ خو دا چې له مدرسې نه دی فارغ شوی؛ نو سخت دريځي عالمان او مسلمانان يې پخپلې ډلې کې نه حسابوي. ددې ليکنې د هند په ټولنې او بهرنيو هيوادونو کې لوستل کيږي او خلک يې قدر کوي؛ خو خپل مسلمانان يې ډير نه خوښوي. ددې پر وړاندې مولانا وحيد الدين خان که څه هم روايتی زده کړې يې کړي او عام عالم دی؛ خو له دې سره علماء څکه وران دی چې هغه په اسلام کې د نوي دور د اړتياوو خبره کوي. دی هڅه کوي چې مسلمان د هندي ټولنې بوه برخه وګرځوي او له حالاتو سره ځان بدل کړي. د بر صغير له وېش لړ وخت

مخکې (کینټ ویل است) یو کتاب (اسلام اینډ ماډرن اینډیا - ۱۹٤٦)
ولیکه، چې پکې یې ویلي وو په سیکولر هند کې به اسلام په تخلیقي
ډول وده کوي؛ خو د پاکستاني ټولنې په جوړښت کې بیا دا امکانات کم
دي.

ددې دا وړاندوینه تقریباً سمه ده، په پاکستان کې د جاګیردارانه او آمرانه
ذهنیت په ټولنې کې اسلام داسې تشریح کیږي، چې پکې د لرغون
پالنې، توکم پالنې، تشدد، جنون او بدلون خلاف جذبې پرتې دي.
پاکستان کې دا هڅه نه کیږي چې مذهب په ذهني او عقلي محک
کېښودل شي. په اسلام اباد کې د ایوب خان په وخت کې اسلامي څېړنیز
مرکز جوړ شو، دا مرکز ددې لپاره جوړ شو چې په اسلام کې به نوې
څېړنې کیږي؛ خو اوس هغوی په داسې څېړنو بوخت دي، چې نه له نویو
اړتیاو او غوښتنو سره اړیکه لري او نه له ټولنیزو ستونزو سره. نړیوال
اسلامي پوهنتون هم په همدې حال دی، دا هم د سخت دریځو او روایتي
عالمانو په لاس کې دی او همدوی روزي.

بل پلو ته د مذهبي ګوندونه مشران اوس عالمان نه؛ یوازې سیاسي
مشران دي، چې غواړي مذهب په سیاسي ډول وکاروي او واک پرې
ترلاسه کړي. که جماعت اسلامي دی، که جمیعت علماء اسلام او که
جمیعت علماء پاکستان، په دوې کې یو کې هم داسې مذهبي عالم
نشته، چې په څېړنیزو چارو بوخت وي. ددوی کارمندان یوازې سیاسي
کار کوونکي دي، تخلیقي او عالمانه ذهن نه لري او د اسلام تفسیر ورځ
تر بلې لرغون پالی کیږي. همدا لامل دی چې اوس په پاکستان کې د
طالبانو نظریه خوښیږي، چې د هغوی په تقلید ښځې په کورونو کې
بندې شي، تلویزونونه مات شي، ږیره پرېښودل شي او د سعودي په څېر
شرعي حدود جاري شي. اوس په مصر او الجیریا کې اسلامي ډلې نمونې

ګرځېدلي، هغوی هلته په تشدد بوختې دي. لامل يوازې همدا دی چې په دوی کې تخليقي او علمي ذهنيت کم دی او چې ځان د نويو حالاتو او غوښتنو مخکې بې وسه وګوري؛ نو بيا د وسلې په مرسته ځانته د حل لارې لټوي.

تخليقي وړتياوې په ازاد چاپيريال کې روزل کيږي او وده کوي. بحث مباحثې او نرمي پرمختګ ورکوي، له دې امله په پاکستان او نورو هيوادونو کې چې آمرانه او جاګيردارانه حکومتونه دي، نه د خبرې حق شته او نه د بحث. پداسې چاپېريال کې نه نوې افکار توليديږي او نه تخليقي وړتياوې راڅرګنديږي. دا ټولنې د تشدد او تنګ نظرۍ په مرسته خپله دفاع کوي، چې پايله يې د ټولنې وروسته پاتې کېدل دي. ټولنې کې د پرمختګ لارې تړل کيږي او ځوړ خواته ګړندی حرکت کوي. مو ړ اوس له همداسې يوه حالت سره مخ يو.

## په پخواني کې د مسلمانو د بېلتون فکر

تاریخ پخپل ذات کې بې پرې علم دی. که څه هم تاریخ د ځینو داسې اسطورو جوړولو لپاره کارول کیږي، چې ټولنې کې د څو محدودو خلکو او ډلو په ګټه وي؛ خو همدا تاریخ بیا د اسطورو د له منځه وړلو او حقیقت څرګندولو لپاره هم پکاریږي. د تاریخ د جوړېدو اصلي دار و مدار پردې وي چې تاریخ څوک جوړوي؟ کوم افکار، نظریات او مفروضې د تاریخ حقیقت ګرځول کیږي؟ تاریخ تل حکمرانو، څواکمنو، سیاسي او مذهبي ډلو او واکمنو طبقو د خپلې ګټې لپاره کارولای او حقیقتونه یې اړولي دي او که اړتیا پېښه شي، نوې پېښې هم رامنځته کوي. له دې وروسته دوهم پړا و دا دی چې دا مفروضې څنګه خپرې شي، د خلکو ذهنونو کې کېښې او حقیقت وګڼل شي.

دا مفروضې چې حقیقت وګڼل شوې او د ټولنې او کلتور یوه برخه وګرځېدې؛ نو خلک ورسره دومره احساساتي شوق او اړیکې پیدا کوي، چې پرې هیڅ ډول نیوکه او تنقید نشي زغملای. دا اسطورې داسې یو ډول روماني تقدس ترلاسه کړي، چې بیا د خلکو د روح او احساس یوه برخه وګرځي.

بیا که پردې اسطورو او افسانو نقد وشي، ماتې شي، وګریږي او حقیقت ترې راویستل شي؛ نو د ټولنې خلکو ته ډېر درد رسیږي. څکه هغوی د حقیقت منلو ته چمتو نه وي او دا پخپل کلتور، جذبو او احساساتو تېرې ګڼي.

زموږ په تاریخ کې داسې یوه مفروضه چې اوس حقیقت ګڼل کیږي، په بر صغیر کې د مسلمانود یوې جلا ټولنې شتون دی، چې ویل کیږي له هندوانو جلا پېژندګلوي یې لرله. همدې جلا والي دوه ولسي نظریې رامنځته کړې او پر همدې بنسټ هیواد وویشل شو. دا افسانه او مفروضه په دومره احساساتي ډول جوړه شوه، چې اوس زموږ د ذهن یوه برخه ګرځېدلې ده. اوس که پردې نقد وشي، خبره وشي او یا رد شي؛ نو له هیواد سره د غدارۍ مترادف ګڼل کیږي. د تاریخ یو کار دا هم دی چې داسې مفروضې ماتې کړي او اصلي بڼه یې راڅرګنده کړي، او هغه پټې ګټې رابښکاره کړي، چې له مخې یې دا ډول مفروضې جوړې شوي دي.

دا مفروضه د نولسمې پېړۍ له وروستیو او د شلمې پېړۍ له پیله پېل کیږي او تر شا یې د مسلمانې اشرافیه او لوړې طبقې لاس و، چې په ځانګړي ډول پکې د شمالي هند مسلمان آمرین مخته وو. ځکه دوی باید دا ثابته کړې واې، چې ددوی غوښتنې یوازې ددوی د خپلو ګټو لپاره نه؛ بلکې د ټولې مسلمانې ټولنې د ګټو لپاره دي.

تر وېش وروسته د مسلمانانو بېلتون د نوي هیواد د رامنځته کېدو مهم بنسټ و او په تاریخي توګه یې د اثباتولو کار خو پاکستاني تاریخ لیکوالو وکړ، چې وېش ته اخلاقي جواز ورکړل شي. اشتیاق احمد قریشي پخپل کتاب ( برصغیر هند و پاکستان کی مسلمان کمیونټی) کې دې خبرې ته اشاره کوي چې مسلمان په هندي ټولنې کې د یوې جلا طبقې یا ډلې په توګه اوسیدل، د ګډون او یووالي د ټولو تحریکونو سره یې مبارزه کوله او خپله پېژندګلوي یې ثابته ساتله. شیخ اکرام پخپل کتاب (هند پاکستان کی مسلم دور حکومت) کې د بېلتون ریښې په هغه وخت کې لټوي، چې مسلمانان هند ته راغلل او چې کله هم د هندوانو او مسلمانانو د یو ځای کولو هڅه شوې نو داسې خلک رامخته شوي دي چې ددې مخالفت یې

کړي او مسلمان بېلتون يې پرځای ساتلای دی. دوی په ځانګړې ډول احمد سرهندي ( مجدد الف ثاني) او د شاه ولي الله او ددوی د کورنيو د خدمتونو ستاينه کوي چې د مسلمانانو خپله پېژندګلوي يې وساتله.
په اوسني دور کې ددې جلا والي د ساتلو امتياز عبدالحميد پخيل کتاب (هند مې مسلم عليحدګي) کې سرسيد، اقبال او جناح ته ورکوي، چې دوی نه يوازې د بېلتون وساته بلکې قوي يې هم کړ او د همدې پر بنسټ يې يو نوی هيواد رامنځته کړ، چې د هندوانو واکمني يې پرې ختمه کړه.
دا تاريخي نظريه چې حکومتي ملاتړ لري، نورو پاکستانيو تاريخ ليکوالو په پټو سترګو منلې او د نصاب په کتابونو کې يې وردننه کړې. دا يې ترې ثابته کړې چې په هند کې مسلمانان تل جلا وو، رسمونه او رواجونه يې، لباس يې، کړه وړه يې او کلتور يې تر هندوانو جلا و؛ نو ځکه د هيواد وېش يوه منطقي پايله وه، هغه دوه ټولنې چې هيڅ ګډ ټکي سره نه لري، څنګه يو ځای اوسېدلای شي؟ دې مفروضې له دې نظريې سره مرسته وکړه چې د پاکستان په نوم يو نظرياتي هيواد رامنځته شي او مذهبي پېژندګلوی يې سياست هم مذهبي کړ.
په دې فرضيې کې يو مهم عنصر په بر صغير کې د هندوانو او مسلمانانو ګډه ټولنه وه، چې د يوه ډډ حيثيت يې درلود. ددوی پېژندګلوي دا وه چې له هره اړخه يې له هندوانو سره توپير لاره، خوا تاريخي حقيقت نه دی. لومړی خبره خو داده چې مسلمانان د يوې ټولنې په حيث متحده ډله نه وه، په وړو وړو ډلګيو وېشلي وو او ډيرې داسې وړې ډلګۍ او کړۍ هم وې چې خپله ځانګړې پېژندګلوي يې لرله. دوی په ټوليزه توګه نه يو ذهن درلود او نه يې د ماضي په اړه يادښتونه يو ډول وو. نه يې ګډ تاريخ لاره او نه له نسلي، قومي او ژبني پلوه سره يو وو. دهند سلاطين چې ختم شول او د ډيلي حکومت کمزوری شو؛ نو د حکومت سياسي يووالی

کړي او مسلمان بيلتون يې پرڅای ساتلای دي. دوی په ځانګړي ډول احمد سرهندي ( مجدد الف ثاني) او د شاه ولي الله او ددوی د کورنيو د خدمتونو ستاينه کوي چې د مسلمانانو خپله پېژندګلوي يې وساتله.

په اوسني دور کې ددې جلا والي د ساتلو امتياز عبدالحميد پخپل کتاب (هند مې مسلم عليحدګي) کې سرسيد، اقبال او جناح ته ورکوي، چې دوی نه يوازې د بېلتون وساته بلکې قوي يې هم کړ او د همدې پر بنسټ يې يو نوی هيواد رامنځته کړ، چې د هندوانو واکمني يې پرې ختمه کړه.

دا تاريخي نظريه چې حکومتي ملاتړ لري، نورو پاکستانيو تاريخ ليکوالو په پټو سترګو منلې او د نصاب په کتابونو کې يې وردننه کړې. دا يې ترې ثابته کړې چې په هند کې مسلمانان تل جلا وو، رسمونه او رواجونه يې، لباس يې، کره وړه يې او کلتور يې تر هندوانو جلا و؛ نو ځکه د هيواد وېش يوه منطقي پايله وه، هغه دوه ټولنې چې هيڅ ګډ ټکي سره نه لري، څنګه يو ځای اوسېدلای شي؟ دې مفروضې له دې نظريې سره مرسته وکړه چې د پاکستان په نوم يو نظرياتي هيواد رامنځته شي او مذهبي پېژندګلوی يې سياست هم مذهبي کړ.

په دې فرضيې کې يو مهم عنصر په بر صغير کې د هندوانو او مسلمانانو ګډه ټولنه وه، چې د يوه ډله حيثيت يې درلود. ددوی پېژندګلوي دا وه چې له هره اړخه يې له هندوانو سره توپير لاره، خوا تاريخي حقيقت نه دی. لومړی خبره خو داده چې مسلمانان د يوې ټولنې په حيث متحده ډله نه وه، په وړو وړو ډلګيو وېشلي وو او ډيرې داسې وړې ډلګۍ او کړۍ هم وې چې خپله ځانګړې پېژندګلوي يې لرله. دوی په ټوليزه توګه نه يو ذهن درلود او نه يې د ماضي په اړه يادښتونه يو ډول وو. نه يې ګډ تاريخ لاره او نه له نسلي، قومي او ژبني پلوه سره يو وو. دهند سلاطين چې ختم شول او د ډيلي حکومت کمزوری شو؛ نو د حکومت سياسي يووالی

هم مات شو او ډېر شمېر مسلماني کورنيو له حکمرانانو خپلواکي واخسته او په ډکن، ګجرات، بنګال، سند او مالوه سيمو کې يې خپل حکومتونه اعلان کړل. د هند په دې سيمو کې مسلمان کلتور له هندوانو سره تړلی و. ددې سيمې مسلمانو ټولنو د شمالي هند له مسلمانانو سره هيڅ ډول نسلي او ژبنۍ اړيکې نه لرلې. ددوی خپله سيمه ايزه پېژندګلوي وه، د ډيلي حکمران يې جابر او يرغلګر ګڼل، ځکه هغوی تل د خپل حکومت د پراخولو لپاره ددوی پر سيمو يرغلونه کول، خلک يې وژل اوشتمني يې ترې لوټله. که مغلي حکومت د بنګال، ډکن او سېند له نظره وليدل شي، جابر حکومت ښکاري چې سيمې نيسي، خپل حکومت پکې اعلانوي او ځايي خلک غلامان کوي.

د هرې سيمې اوسيدونکي مسلمانان خپل ځانګړې او جلا ماضي لري او ځانګړي تاريخي يادښتونه د هغوی اتلان ټاکي. د ډيلي له سلاطينو او مغل باچايانو سره يې جګړې کړي. په ډکن کې ملک عنبر او په خيبر پښتونخوا کې د خوشال خان خټک بېلګې ورکول کيږي. که سيمه ايز تاريخ ولوستل شي، پکې پرته تاريخي نظريه د شمالی هند له تاريخ سره توپير لري.

له ولسي اړخه هم مسلمانه ټولنه په دوو جلا ډلو وېشل کيږي، يوه هغه چې پلار نيکه يې له منځنۍ اسيا، ايران، منځني ختيځ او افغانستان څخه راغلي دي او په هند کې ميشت شوي دي. دوېمه هغه ډله ده چې ځايي خلک پکې راځي، دوی اسلام منلی او مسلمان شوي دي، خو ددې دواړو تر منځه يو مستقل بېلتون شته. په ټول تاريخ کې هغو مسلمانانو ځان له ځايي مسلمانانو څان جلاساتلی، چې له بهر راغلي دي. هغوی د خپلې وينې د پاکۍ او سوچه ساتلو لپاره له ځايي کورنيو سره خپلوی ندي کړي. د نسلي لوړاوي دا نظريه د برني په تاريخ ( فيروزشاهي) او

وروسته بیا د (کفو) په نظریه کې ښکاري چې د ذات وېش ښنسټ یې کېښښود.

له کلتوري پلوه هم دا دوه ډلې سره جلا وې. بهرني مسلمانان چې هند ته راغلل؛ ځان سره یې خپل رسمونه او رواجونه راوړل، چې له امله ددوی او ځایي کلتور تر منځ تل ټکر موجود و. کلتور بېلتون په مذهب کې هم مالومېږي. مسلمان اشراف چې له بهره راغلي وو او ښارونو کې اوسېدل، دوی د سوچه مذهب پیروي وکړه او ځایي مسلمانان په ځایي کلتور کې ښکېل وو چې خپل کلتور، رسم او رواجونه د خپل مذهب برخه وګرځول. پروفېسور مجیب په خپل کتاب (هند کی مسلمان) کې دا ډول ډېرې بېلګې راوړي، چې ځایي خلک مسلمان شول او خپل پلارنۍ کلتورې یې پرېښښود. مثلاً د الور او تپور، چې (میو) قبیله پکې اوسېدله ددوی نومونه هندو دي؛ خو خپله مسلماني یې داسې ښودله چې د نوم پسې به یې دخان وروستاړی تړه. ټول هندي جشنونه به یې نمانځل. په هند کې داسې ډېرې ټولنې (برادرۍ) شته چې نیمې هندوانې او نیمې مسلمانانې، دوی له کوم ټکر او شخړې لګیا دي خپله ځانګړې پېژندګلوي پالي. ددې پېژندګلوۍ له امله اشرافې مسلمانې طبقې دوی له ځانه جلا او لېرې کړل او له کلتوري، اخلاقي او ټولنیزه اړخه یې تر ځان ښکته وګڼل.

دا بېلتون یوازې تر دوی محدود نه و. خپله اشرافي مسلمانان هم د سیمو له پلوه سره جلا وو. د ډکن مسلمانانو د بنګال له مسلمانانو سره په لباس، ژبې او رسومو کې توپیر درلود. سندي مسلمانانو له پنجابي مسلمانانو سره توپیر لاره او د راجستان اوسېدونکي بیا د نورو سیمو مسلمانانو ته ورته نه وو. د دربار ژبه فارسي وه، ځکه اشرافي مسلمانانو خپله کړې وه، خو د نورو مسلمانانو ژبه نه وه. د هندو مذهب لوړې طبقې هم دا ژبه

خپله کړې وه. په ځانګړي ډول (ګاسیت) طبقې. خو سیمه ایزې ژبې او لهجې په ورځنې ژوند کې کارېدې، دا د عامو ملسمانانو تر څنګ نورو لوړو طبقو هم ویلې. له دې امله ځایي ژبو هم د مسلمانانو خپل منځي مخالفت ساتلای و او مسلمانو ونه شو کړای چې یوه ګډه ژبه رامنځته کړ سي.

دلته پوښتنه پیدا کیږي چې مسلمانان له کلتوري، ټولنیز، ژبني او ډله ایز اړخه سره بېل وو: نو ددوی خپله ځانګړي پېژندګلویي ولې له منځه لاړه، چا دا هڅه وکړه او ددوی مذهبي پېژندګلوي څنګه رامخې ته شوه، چې پربنسټ یې دوی ټول سره متحد او یو شول.

د هندو او مسلمانانو په مذهبي پېژندګلوي راپارولو کې د استعمارګرو قوتونو لوی لاس و. پروفیسر فرانس روبنسن پخپل کتاب ( هند کې مسلمانو کی علیحدګی) کې لیکلي دي چې په نولسمې پېړۍ کې برطانیایي اداره دې ته لېواله وه چې هندي ولس یې ژبنې، نسلي، او سیمه ایزه پلوه نه ویشه؛ بلکې ددوی پېژندګلوي یې پر مذهبي بنسټ کوله، له دې امله یې اول خلک په پارسي، هندو، مسلمان او سکهانو وپېژندل. ددې لیوالتیا څرګندونه جیمس مل هم پخپل کتاب (برطانوي هند کی تاریخ) کې کړې ده، چې تاریخ په هندو، مسلمانو او برطانوي دورو وویشه او مذهبي رنګ یې ورکړ. سیمه ایز (ګزیټر) چې ولیکل شول؛ نو په هغې کې هم رسمونه، جشنونه او رخصتۍ په هندو او مسلمانو وویشل شوې. وارن هېټنګز چې والي شو؛ نو هندوانو او مسلمانانو ته یې د قانون جلا کتابونه جوړ کړل. اوس دا ویل ستونزمن دي چې برطانیایي حکومت دا ویش ولې کاوه، ددې لپاره چې دوه ډلې سره جلا کړي او خپلې پالیسۍ پرې عملي کړي او که دا به کومه حکومتي اړتیا وه؛ خو دا خبره اړینه ده چې په دواړو ډلو کې یې د مذهبي پېژندګلوۍ احساس

پیدا کړ، چې وروسته بیا همدې احساس مذهب د سیاست برخه وګرځوله. ددې ګټه د دواړو خواو فرقه ایزو ذهن لرونکو سیاسي رهبرانو ته ورسېده، چې د فرقه واریت پر بنسټ یې سیاست وځلاوه.

ولسونه په مصنوعي ډول جوړېږي. انرسټ ګیلنر په خپل کتاب (قوم پرستی) کې لیکي، چې قوم پرستی قومونه هغه وخت کې جوړوي چې قومونه اصلاً نه وي، اول قوم پرستي راڅرګندېږي او وروسته بیا قومونه. پال براس پخپل کتاب (ژبه، مذهب او سیاست) کې د قوم جوړوني په اړه نظریاتي بحث کوي. دا مذهب او ژبه دوه مهم عناصر ګڼي چې پر بنسټ یې قامونه جوړېږي؛ خو دا دواړه د وخت او اړتیا له مخې شاته هم غورځول کیږي. او کارول کیږي هم.د قوم د جوړولو په دویم پړاو کې واکمن او ګټه غوښتونکې طبقه قومي سمبولونه جوړوي چې خلک په احساساتي ډول له ځان راتاوه وي. درېیم پړاو کې مذهبي ګوندونه وي چې خلک تر ځان چاپېروي او ګوندي شعور پکې پیدا کوي، په دې وخت کې نژادي یا(Ethnic)ګوندونه په ټولنې بدلیږي او وروسته بیا د قومیتونو بڼه خپلوي او وروسته بیا د یوه واحد په توګه راڅرګندېږي،. شمالي هند کې مسلمانانو حکمرانانو مذهب د یوې نښې او پېژندګلوۍ په بڼه اختیار کړ او هڅه یې وکړه چې ددوی کلتوري، ټولنیز، ژبنی او سیمه ایزې پېژندګلوۍ له منځه لاړې شي یا لږ تر لږه کمزورې شي. له مذهب وروسته اردو ژبه هم د یوه قومي سمبول په توګه وکارول شوه؛ که څه هم دا یوازې د مسلمانانو ژبه نه وه، هندوانو هم ویله او خپله اشرافي مسلمانانو هم په ۱۹ پېړۍ کې د مجبورۍ له مخې خپله کړه.

د مذهب او ژبې دا سمبولونه د هند په سیاسي چاپېریال کې مسلمانو ډلو ومنل او ددې یو لامل غبرګون و چې په مسلمانانو کې یې دمذهب پېژندګلوي راوپاروله، ځکه په هندوانو کې د یوه واحد د رامنځته کولو

لپاره تحریکونه چلېدل. خو پر دې سربېره هم د دواړو خواوو سیاسیونو پردې خبرې ټینګار کاوه چې له یو بل سره باید اتحاد وشي او سیاسي امتیازات دې سره وویشل شي. داسې ډېرې بېلګې شته چې په ټولو کې مهمه يې ۱۹۱٦ز کال کې لکهنو تړون دی چې د خلافت په تحریک کې هم مسلمانان او هندوان مساوي شریک شول.؛ خو په ۱۹۲۲ ز کال کې د غلا پېښو او خلافت د تحریک له ناکامۍ سره حالات بدل شول او د دواړو ډلو رهبرانو کې بېلتون پېل شو. د ۱۹۳۷ ز کال ټاکنو دا سیاسي بېلتون لاپسې زیات کړ. ددې سیاسي پېښو نه په ګټې اخیستو سره مسلمانانو د بېلتون لپاره کار پېل کړ، چې رېښې يې د هندي او اردو په کش مکش، د بنګال وېش، جلاټاکنې، په دندو کې د کوټه سیستم او د دولتي ادارو په نمایندګۍ کې ولټول شوې. دا يې هم وویل چې د برطانیایانو دا چلند له مسلماناو سره یو اړخیز دی او دې کار په مسلمانانو کې د مظلومیت احساس پېدا کړ، داسې یوه ډله چې هېڅ مدافع يې نه و. په ۱۹۳۰ ز لسیزې کې فرقه ایزې جذبې راوپارېدې او د تاریخ بدلول يې پېل کړ، هندوانو او مسلمانانو د تاریخ په پاڼو کې ورک شوي خلک بیا راوویستل او اتلان يې ونومول. د سوچه تاریخ تحریک تبلیغات پېل کړ او د فرقه واریت احساس لاپسې قوي کېدل، چې د مسلمانانو د بېلتون جذبه یکې په یوه ځانګړې چاپېریال او حالت کې راپېدا شوه او مسلمانو رهبرانو وویل چې مسلمانان یو جلا قوم دی چې تاریخ، کلتور، ژبه، رواجونه، قوانین او د ژوند ډول يې له هندوانو نه جلا دی.

مسلمانان چې د یوه جلا قوم په حیث جلا کېدل؛ نو یکې داسې خلک هم وو چې د بېلتون دا نظریه يې ننګوله. پدوی کې ابوالکلام ازاد، مولانا محمو الحسن، ډاکټر حسن انصاري رفیع الدین قدوایي شامل وو، دوی په تاریخ کې (نشنلست مسلمانانو) په نوم یاد شول، ددوی له نظره قومونه د

مذهب نه؛ بلکې د سیمې پر بنسټ جوړېږي نو ځکه مسلمانان اول هندیان دي او بیا مسلمانان.

دا پوښتنه ده چې د پاکستان له جوړېدو وروسته د مسلمانانو قوم پرستي څه شوه؟ نوی هیواد چې جوړ شو د مسلمان بېلتون او قوم پرستۍ ډول هم بدل شو، ځکه د قوم پرستۍ دواړو سمبولونه ژبه او مذهب پاکستاني ځایي رهبرانو وننګول، ځکه دا یې په ګټه نه وه چې پاکستاني رهبران دا د سمبولونه وکاروي او دوی له امتیازاتو بې برخې کړي. د مرکز قوت د قام پرستۍ په نوم پراخ شوی اوس یې پر ضد تحریکونه وچلېدل، ځایي رهبرانو د خپلو ګټو لپاره د ځایي ژبو پربنسټ تحریکونه وچلول. بنګال لومړی د قوم پرستۍ پر ضد غږ پورته کړ او بنګالي ژبه یې د قوم پرستۍ بنسټ وګرځاوه، بیا دا کار سند کې پیل شو. اوس د کډوالۍ قوم پرستۍ بنسټ ژبه ده، پایله یې دا شوه چې ځای پر ځای قومي تحریکونه پیل شول، دوی مذهب رد کړ او ژبه یې د قومي سمبول په حیث اختیار کړه او ددې شاو خواته خپرې ډلې یې راټولې کړې. دې وخت کې اردو ژبه د قومي سبمول په توګه راښکاره شوې وه، چې په سیاست کې یې دا حیثیت هم له منځه لاړ. په دې توګه ۵۰ کالو کې دننه دننه مذهب او ژبه چې د مسلمانانو د بیلتون صلي سمبولونه وو؛ ختم شول او د مسلمان قوم هغه نظریه ختمه شوه چې پر بنسټ یې پاکستان جوړ شوی و.

موږ باید له تاریخ نه زده کړه وکړو، اوس چې زموږ ټولنه په کوم فرقه واریت کې ښکېل ده او خپل سیاست او کلتور یې وروسته پرې ایښي دي، ددې د حل لپاره باید ټولنه په سیکولر او جمهوري بنسټونو جوړه شي چې د هر مذهب او هرې ډلې خلک یکې مساوي حقونه ولري او د همدې مساوات پربنسټ یو واحد قوم شي.

# له ماضي څخه سیاسي ګټه

جګړه یوازې په ساینسي او تخنیکي وسلو نه کیږي. فکري او نظریاتې جګړه هم شته. په اوسني دور کې علمي جګړه له وسله ایزې جګړې نه ډېره قوي او پرمختللې ده. هغه هیوادونه چې پکې له علم او پوهې ته سپک کتل کیږي،تل د نورو هیوادونو له علم او پوهې ماته خوري او له منځه ځي. په ټولنې کې هم پوهې او باسواده طبقې خپله پوهه کاروی او په مرسته یې ټولنې کې د قدر وړ مقام ترلاسه کوي. په دې خلکو د خپل اوسني وخت د اړتیاو پوره کولو لپاره د خپل ماضي تشکیل پوره کوي. له تاریخ څخه د سیاسي ګټې اخیستلو لپاره اسطورې او روایات جوړیږي؛ خو په هرې ټولنې کې چې دا اسطورې او روایات رامنځته کیږي هلته داسې خلک هم وي چې له دې څخه پردې پورته کوي او حقیقت یې راښکاره کوي. دا خلک دا اسطوري ماتوي او حقیقت یې د خلکو مخې ته راوي او د تاریخ په تشکیل کې دا کش مشکونه موجود وي.

د هر هیواد تاریخ چې لولو ګورو چې هر څوک خپل ماضي د خپل حال په اینه کې ګوري، د خپل اوسني دور اړتیاوې په نظر کې نیسي او د خپلو غوښتنو سره سم یې بیا تشکیلوي. له دې امله له تاریخ څخه نوي تاویلونه کیږي. مثلاً که موږ د ماضي تشکیل وګورو؛ نو بېلابېلې بېلګې یې رامخته کیږي. یوه د استعماري دور تاریخ دی، چې پکې د استعمارګرو قوتونو فکر پرمخ وړل شوی دی، چې ددوی د ماتحتو ولسونو ماضي تیاره ده او بې ارزښته ده اود ماتې خوړلو لامل یې ددوی بې تمدنې ښودل

شوې ده. دا چې لویدیځ قوتونه مهذب او متمدن دي، نو دا یې حق دی چې پر نورو حکومت وکړي او متمدن یې کړي. په هند کې تاریخ لیکوالو د هند تاریخ د همدې استعماری فکر له مخې لیکلی دی او دلیل دا ورکول شوی دی، چې هند له پخوا څخه د پردیو هیوادونو تر واک لاندې پاتې شوی دی او هېڅ وخت یې خپلواک حکومت ندی لرلی؛ نو څکه دوی په حکومتي چارو سم نه پوهیږي او نشي کولای خپله حکومت وکړي، له بله پلوه یې د هندي ټولنې داسې یو تصویر وړاندې کړ چې له کرکې ، ظلم او ناپوهۍ پرته بلکې بل څه نه و. نو څکه داسې ښودل شوې ده چې انګریزي استعمار او ورسره مقابله ددوی لپاره یو نعمت دی.

ددې په ځواب کې هندي تاریخ لیکوالو د قومیت تر اغېزې لاندې خپل تاریخ ولیکه چې د هند ماضي ترې ستره او ښه ښکاري، تر څنګ یې دا هم ښودل کیږي، چې په دې دور کې په هند کې ساینس او ټکنالوجي په عروج کې وه. د هند د ماضي په انځورولو کې دواړو خواو مبالغه کړې ده او لامل یې دادې چې دواړو د اوسني حالت په نظر کې نیولو سره ماضي انځور کړې ده. په دې کې د ټولنې امتیاز لرونکو طبقو خپله ګټه په نظر کې نیولې او د عام ولس ګټو ته یې هیڅ پام پکې ندی کړی، له دې امله د سیاسي حالاتو له مخې اوس ماضي بیا له سره انځوریږي.

د ماضي د تشکیل یا انځورونې یوه بله بېلګه هم شته، په دې کې د ماضي یوازې هغه پېښې راخیستل کیږي چې په ګټه وي او بیا د هماغې پربنسټ ماضي انځوریږي. داسې ډېر په هغه وخت کې کیږي چې یو قوي او ځواکمن ولس پر بل هیواد یا سیمې حمله وکړي، خلک یې ووژني او بې مات کړي او د خان تابع یې وګرځوي، په دې وخت کې دا ولسونه ځانته د یرغل لپاره اخلاقي جواز لټوي. مثلاً یو دلیل دا ورکول کیږي چې ماته خوړلي ولسونه ناپوه او بې تمدنه وو؛ نو څکه د ځمکې او هیواد ملکیت

حق نلري. یوازې لوړ ولسونه حق ري چې د هیواد لرونکي او خاوندان وي. په دې لړ کې دا دلیل ورکول کیږي چې دوی په بې تمدنه سیمو کې د تمدن بنسټونه کېښودل او هغه یې د تمدن زانګوګانې وګرځولې. ددې یوه بېلګه امریکا ده چې کله ورته اروپایي استعمارګر راغلل؛ نو ځایي خلک یې د ځان پر وړاندې ناپوه او وحشي وبلل، ځایي خلک چې د انسانیت او تمدن له درجې وغورځېدل؛ نو بیا دوی په اسانه کولای شول چې هغوی ووژني، استحصال یې کړي او ګټه ترې واخلي. ددې منطق له مخې د هغوی ظلم ته جواز ورکول شو او ضمیر یې پر خپلو کړیو ظلمونو پښېمانه نه شو، دوی امریکا خپل اصلي هواد وګڼه او ویل یې چې ځایي خلک پرې هېڅ ډول حق نه لري.

همدا لامل دی چې کله د امریکا تاریخ لیکل کیږي او د ماضي یادونه یې کیږي؛ نو ځایي خلک پکې ورک وي. د امریکا په تاریخ کې ددوی هیڅ یادونه نه کیږي. تاریخ یې له کولمبس څخه پیل کیږي او هیواد (کشف) کیږي؛ نو څوک چې څه کشف کوي د هغه د همدې کشفونکي ملکیت ګڼل کیږي، دا چې امریکا اروپایانو کشف کړې ده نو د همدوی شوه. دا له دې امله شونې شوه چې امریکا د اروپایي تمدن یوه برخه ورګرځېده، دا چې اروپایي تمدن ښه او لوړ دی نو د امریکا مایا او ایزوټیک تمدنونو دا وړتیا نلرله چې سیالي ورسره وکړي. د امریکا اروپایي اوسیدونکو ته د تاریخ دا نظریه ډېره زړه راښکونکې وه ځکه ددې نظریې له مخې هغوی ځانونه لوړ ګڼل، خپل سیاسي اهداف یې عملي کړل او ځایي خلک یې د هغوی له خمکو خلاص کړل.

سپین پوټکو ولسونو دا کار په آسټرالیا، نیوزي لېنډ او جنوبي افریقا کې هم وکړ. په ۱۹۴۸ ز کال کې اسرائیل تر خپل قیام وروسته د فلسطین په تاریخ لیکلو او ماضي انځورولو کې دا بېلګې خپله کړه، چې ددې له راتګ

څخه مخکې په فلسطین کې ابادي خپره وه، ځمکې تشې پرتې و، کلنور پکې نه و. یهودیان چې دې ځمکې ته راغلل؛ نو شاړې ځمکې یې ابادې او کر ته چمتو کړې، ورسره یې سیمه متمدنه کړه او له اروپايي تمدن سره یې وتړله. یهودیانو چې فلسطین ونیوه ځايي عرب اوسیدونکي یې له خپلو ځمکو بې برخې کړل. د ترهګرۍ او وژنو په مرسته یې هغوی له منځه یوړل، اوس دې ټولو ته اسرايلیان او اسرایل پلوي تاریخ لیکوال د تاریخ لیکنې په مرسته اخلاقي جواز ورکوي.

کیت ویلیم وایټ لیم (Keith W. White lam) پخپل کتاب ( د پخواني اسرائیل رامنځته کېدل) (The Invention of Ancient Israel) کې د اسرائیل تاریخ ته یوه کتنه کړې چې په کوم ډول اسرائیل او د هغوی پلویان د فسلطین پخوانی تاریخ انځوروي؟ موخه یې ترې ښوول دا ده چې د نوي اسرائیلي دولت منځ ته راتګ مشروع عمل وګڼل شي. وروسته بیا دې ته اشاره کوي چې اسرائیلیان له خپلو لرغونو آثارو څخه په ګټه اخیستنې غواړي په فلسطین خپل تاریخي حق پوخ او قوي کړي. دوی یوازې هغو لاس ته راوړنو ته پام کوي چې ترې په پخواني وخت کې د اسرائیلو شتون ثابتیږي او په مرسته یې غواړي اوسنی حالت سم ثابت کړي او د فلسطینیانو تاریخ ونډه ترې واخلي. ددې موخې په روښانولو کې هغه زیاتوي، چې اسرائیل خپل خیالي تاریخ جوړوي، د انجیل پر بنسټ خبرې کوي او بیا ورته داسې خیالي ماخذونه ورکوي چې په مرسته یې اسرائیل د قبضې حق ترلاسه کړي او فلسطینیان له خپلو اصلي حقونو بې برخې کړي.

د فلسطین د له منځه وړلو او د خپل لوړاوي د ثابتولو لپاره اسرائیل د تاریخ تر څنګ له لرغونو آثارو هم ګټه اخلي. ټریګر (Trigger) پخپل کتاب ( The approaches of archaeology) کې لیکي چې ولسونو په کوم

ډول د خپلو لرغونو په مرسته خپل تیر شوی تاریخ ثابتوي. بیا یې دې ته اشاره کړې چې اسرائیل خپل لرغوني آثار ترلاسه کوي، کاروي یې او پر فلسطینیانو خپل تاریخي حق ثابتوي. دی یوازې هغو آثارو ته اشاره کوي، چې په ماضي کې ترې د یهودیانو شتون ثابتیږي او په مرسته یې اوسنی حالت بسودل کیږي. د اوسنیو اسرائیلي کلیو د سهي ثابتولو لپاره په دې کلیو کې د پخوانیو یهودیانو د کلي نښې لټوي. ددې آثارو په مرسته دوی غواړي ثابت کړي چې د اسرائیلو اوسني کلي د پخوانیو یهودانو د تاریخ لړۍ ده چې دوی یې پر مخ وړي. ورسره دا هم وایي چې فسلطینیان نه تاریخ لري او نه یې پخوا ژوند کاوه، دوی دادعوه هم کوي چې پخوا د اسرائیلو ځمکې پراخه وې، خلک یې شیندلي پراته وو؛ نو همدا لامل شو چې له طبیعي سرچینو یې ګټه وانه خسته او نه یې وکولای شول چې یو تمدن رامنځته کړي. په دې خاورو د پخواني او اوسني تمدن رامنځته کونکي یوازې یهودیان دي، ددې دلیل انګازه د جرمني نازیانو په هغه فلسفه کې اورېدل کیږي چې پربنسټ یې هغوی غوښتل ختیځه اروپا او روسیه تر خپل واک لاندې راولي، دوی هم همدا ویل چې د ختیځې اروپا ولسونه له نسلي پلوه ښکته او بې تمدنه دي؛ نو دا وړتیا نه لري چې دخپلو سیمو طبیعي سرچینې وکاروي او تمدن ته پراختیا ورکړي. نو دا چې جرمنیان له اصلاً هوښیار او د پرمختللي تمدن لرونکي دي نو دا یې حق دی چې ددوی ځمکې تر ې ونیسي، نسل یې یا له منځه یوسي او یا یې غلام کړي، ځمکنۍ سرچینې راوباسي ویې کاروي او پرمختګ پرې وکړي.

وایټ لام دې ته هم اشاره کړې چې اسرائیل په اوسني وخت کې لرغوني آثار څنګه په سیاسي ډول کاروي، د بېلګې په ډول (مسادا) هغه ښار دی چې رومیانو پکې یهودیانو ته ماتې ورکړې وه او ترې نیولای یې و، ددې له

کشف نه وروسته دوی دا ښار خپل ولسي سمبول وګرځاوه. زیرو بوال (Zerubval) په ۱۹۹۴ز کال کې د ( د یوه یاد مرګ او د یوه مرګ یاد) په نوم یوې مقالې کې په دې اړه داسې ویلي:

"موږ چې د مسادا جنګیالیو صفت کوو، نو بې له کومې مبالغې یې وایو، ددوی زړه ورتوب او نورې خبرې د یوه ولس د زړه ور توب تسلسل ساتي. موږ نن دلته د پخوانیو او نویو پوځونو سره ولاړ یو، دا ځای د هغو خلکو د هډو او پوځي مرکزونو کنډرې دي چې موږ یې برباد کړي وو. موږ نن دلته ولاړ یو؛ خو د خپلو دښمنانو د ځواک پر وړاندې بې وسه او مجبور نه یو او نه هم داسې جګړه کوو چې ویې بایلو. نن موږ قوي او ځواکمن یو او پردي پوهیږو چې پخپله د خپل بخت خاوندان یو. موږ د هغو اتلانو بچي یو چې نن دلته ولاړ دي او وعده کوي چې دا کنډرونه به بیا رغوي".

اسرائیلي تاریخ لیکوالو لومړی دا هڅه کړې چې یوازې د یهودیانو تاریخ ولیکي او فلسطین پکې بیخي ورک کړی. د فلسطین نوم یې رد کړ، هغه ځمکه چې دوی نیولې وه د اسرائیل، بائبل، سپیڅلې ځمکه، د اسرایل او کنعان ځمکه، پخواني اسرائیل او د تورات ځمکه یې ونوموله. دوی غوښتل دا ثابته کړي چې په تاریخ کې د فلسطین په نوم هیڅ ځمکه نشته. دوتهن (Dothan) د ( د بابل د دور اصطلاحات )(۱۹۸۴) کې لیکلي دي چې:

" نږدې تر سلو کالو پورې د فلسطین نوم په سختۍ وکارېده، په اتلسمې پېړۍ کې د اروپا له ویښتابه سره چې له دې ځمکې سره مینه او علاقه پیدا شوه نو د لاطیني ژبې پیلستهینا (Palestina) لغت ورته وکارېده. موږ دا په پوره باور وایو چې په تاریخ کې د فلسطین لغت هیڅکله هم دې خاورې ته چا ندی کارولای؛ نو ځکه ددې هیواد د لرغونو او تاریخي آثارو لپاره ددې نوم کارول بیخي ناموزون دي".

په دې ډول فلسطينيان لومړی له خپل نوم او هيواده بې برخې شول او په داسې ولس بدل شول چې نه خپله خاوره لري او نه خپل هيواد او نه هم دا وس لري چې اسرائيل وننګوي. دويم ګام دا پورته شو چې د همدوی په ځمکه کې دوی ختم شي، ددې کار لپاره يې خپل د تاريخ بنسټ انجيل وټاکه، ځکه دا شواهد د يهوديانو او اسرايلو په حق کې دي. په دې توګه تاريخ کې د فلسطينيانو ځای اسرايئلو ونيوه او د اسرائيلو ځای فلسطينيانو ته پاتې شو. دې کار ته کتو (وايټ لام) وليکل چې: "د پخوانيو آثار او اوسنيو شواهدوله مخې د فلسطين خاوره په اسرائيل واوښته، اوس ټول پام يوازې د اسرائيل تاريخ ته دی او نورې پېښې يوازې ددې تاريخ شاليد دی. له دې امله لرغونی اسرائيلي تاريخ تر نوي دور پورې د يوې لړۍ په بڼه راڅرګنديږي، چې د اوسني اروپايي تمدن د ودې او پرمختګ لپاره يې مواد برابر کړل".

دريم ګام دا دی چې د اروپا خواخوږي ترلاسه شي. ددې کار لپاره بايد ثابته شي چې د اسرائيلو او اروپا ګډې او ژورې تاريخي ريښې لري. پخواني اسرائيل د بابلي سميري، مصري او اروپايي تمدنونه سره نښلول، دا ددې لامل شو چې لويديځ له ختيځ څخه زده کړه وکړه او دا زده کړه د يونان او روم د علم په بڼه د اروپا په رسانس کې راڅرګنده شوه. دې د مذهب د اصلاح تحريک رامنځته کړ چې له امله يې اروپايي تمدن پر نړيوال تمدن بدل شول او ددې ټولو لپاره اروپا د اسرائيلو احسانمنده ده. ددې په بدل کې بايد اروپا له اسرائيلو سره مرسته وکړي، ځکه همدا اسرائيل دي چې اورپايي تمدن يې په منځنی او ختيځې اروپا کې ساتلی دی.

د اوسني اسرائيلي دولت په اړه تاريخپوهان دا دليل وړاندې کوي، کله چې اسرائيل له مصر نه فلسطين شول نو دوی د داود عليه سلام او او

سلیمان علیه سلام په مشرۍ هلته یو ولسي حکومت رامنځته کړ. دوی چې شاړې ځمکې ابادې کړې، د هغه ځای له کنعانې اوسیدونکو سره بې جګړې وکړې. دا چې ځایي خلکو وړتیا نه لرله؛ نو د اسرائیلو پر وړاندې یې ماتې ومنله او یهودیانو هلته خپل ولسي حکومت رامنځته کړ. د تاریخ له دې نظره په اوسني دور کې شته یهودیان د خپل هجرت، اوسیدنې او ولسي حکومت رامنځته کول جایز ګڼي.

دویم نظر دا دی چې کله اسرائیلي مصریان فلسطین ته راننوتل؛ نو دلته دوه ډلې اوسېدلې، یوه هغه چې له مخکې یهودیان وو او دلته اوسېدل او بله ډله کنعانیان وو چې په بېلابیلو ډلو ویشل شوي وو. نو دوی چې کله راغلل یهودیان ورسره شول او کنعانیان یې په جګړو او تړونونو له ځان سره یو ځای کړل. په لومړي نظر کې د اسرائیلو ابادي په سوله ایزه توګه ښودل شوې ده او په دویم کې بیا ښودل کیږي چې د فتوحاتو په مرسته یې هلته قبضه کړې ده.

اسرائیلي تاریخ لیکوال البرایټ ددې ټولو وژنو او ورانې ته د جواز په ډول وایي دا اړینه ده چې ځینې وخت لوړ نسلونه ټیټو نسلونو سره وجنګیږي او له منځه یې یوسي. ځکه تر یوه وخته دوی سره یو ځای اوسېدلای شي، خو وروسته بیا همدا ګډون د لوړ نسل د بربادۍ لامل کیږي.

په یوې بلې نظریې کې وژل کیږي، چې اسرائیلو خاوره د الله ج له خوا یهودیانو ته ډالۍ ده او دوی اړ دي ساتنه ترې وکړي. دوی زیاتوي چې الله تعالی ج اسرائیل د همدې لپاره ځمکې ته راولیږل، چې د کنعانیانو تمدن مخ پر ځوړ و، دوی چې راغلل، خدای او طبیعت ته یې نوی ډول ورکړ، دا یو انقلابي ګام و چې پخوا اخیستل شوی و او اوس هم له حالاتو سره اړخ لګوي.

د اسرائیلو او فلسطینانو تر منځ له اوسنیو شخړو د دواړو ولسونو لیوالتیا

ځرګندېږي. اسرائیلیان د خپل دولت د ساتلو او اخلاقي جواز ترلاسه کولو لپاره له تاریخ، لرغونو آثارو، رسنیو، مذهب او د جرمنیانو او اروپایانو په لاس د شویو ظلمونو څخه کار اخلي او په دې توګه د فلسطین غږ بندوي. دا چې عیسویت له اروپا پیل شوی، اروپایي علوم، ساینس او ټکنالوجي ورته په میراث کې پاتې دي، همدا لامل و چې دوی په فلسطین کې عربانو سره په جګړې کې هغوی په اسانه مات کړل. اسرائیلیانو عصري علوم او ټکنالوجي پخپلې ګټې وکاروله، د وژنو او ترهګرۍ په مرسته یې عربان ووېرول او کډه کولو ته یې اړیستل. ځمکې یې ترې وپېرلې یا یې ترې په زور ونیولې او خپلې ټولې کړنې یې نړۍ ته داسې وښودلې چې دوی د خپل خوندیتوب او حقونو لپاره جګړه کوي. فلسطینانو ددوی سره د سیالۍ لپاره نه پوهه لرله او نه ټکنالوجي؛ نو ددوی پر وړاندې د اسرائیلو بریا یوازې د پوهې پر مټ وه.

اوسني حالت ته په کتو ویلای شو، چې تر څو فلسطینیان د اسرائیلو جوړ کړی تاریخ مات نه کړي او خپل تاریخ ونه ښايي؛ تر هغه وخته نشي کولای چې په تاریخ خپل حق ثابت کړي. ځکه په عمل کې د بریا لپاره یوازې خبرې او وېناوې بسنه نه کوي؛ بلکې د تاریخي حقایقو پربنسټ باید دعوه جوړه شي او بیا یې د ګټلو لپاره هڅې وشي.

# تاریخ لیکوالي او ذهن جوړېدل

یو مفکر وایي؛ څوک چې په علم یا پوهه ملنډې ووهي، علم یا پوهه بیا هغه ملنډې وهي. څکه د ناپوهی له امله ټولنه وروسته پاتې کیږي او تر داسې حده رسیږي، چې نړۍ ورسره اړیکې ختموي. همدا لامل دی چې فرانسوي مفکر فوکو ویل، پوهه قوت دی، څوک یې چې نه لري هغوی بې وزله، کمزوري او مجبور دي. خو یوازې د علم او پوهې ترلاسه کول بسنه نه کوي، دا هم مهمه ده چې پوهه وپنځول (تخلیق) شي. څکه هغه پوهه چې ترلاسه کیږي په هغې کې د ترلاسه کونکي حاصلاتي، پرمختګ کونکی او وده کونکی فکر شامل نه وی. خو کله چې پوهه یا علم پنځول کیږي؛ نو د هغه په وده کې یې بیا پوره ونډه وي، ذهن هم ورسره جوړیږي، وده کوي او ورو ورو بلوغ ته رسیږي. دا حقیقت دی، کومه پوهه چې ترلاسه کیږي هغه د خپل معیار مطابق ذهن یو څه بدلوي څکه دا علم یا پوهه په ځانګړي حالت او چاپېریال کې رامنځه کیږي؛ نو څکه یې مواد هم د هماغو ځانګړتیاوو لرونکي وي.

بېلګه به یې تاریخ وړاندې کړو، د تاریخ اوسنی علم د لویدیځ پنځ دی، چې د جوړولو لپاره یې خپل ځانګړي قوانین او ضوابط وضع شوي دي؛ مثلاً ماخذونه څنګه ولوستل شي؟ متون څنګه ولوستل شي؟ شاهدي ولې او څنګه ومنل شي؟ د متضادو شهادتونو په صورت کې د موضوع حقیقت څنګه ومنل شي؟ د ژبې او اصطلاحاتو په معنوي او ادبي اړخ څنګه وپوهېدل شي ؟ او داسې نور... . د داسې چارو په مرسته هڅه

شوې تاریخ په داسې بوې پوهې کې واچول شي، چې په مرسته یې تاریخ په معروضي ډول ولوستل شي؛ خو له دې سره سره موږ گورو چې له شته ساینسي اصولو سره بیا هم د لویدیځ په تاریخ لیکنې کې جانب داري او تعصب رامنځته کیږي.

د اسیاسي او افریقایي تاریخ لیکوالو ستونزه بیا دا ده، چې دوی له لویدیځ څخه د تاریخ لیکنې اصول زده کوي، خو ددې ترڅنگ پکې د لویدیځ د تاریخ لیکوالۍ تعصبات هم راځي. تر ټولو لویه ستونزه دا ده چې لویدیځ والو پر خپل تاریخ ډیر څېړنیز کار کړی دی، خپل تاریخ یې په دورو ویشلی دی؛ نو ځکه زموږ تاریخ لیکوالو ته د هغوی تاریخ یوه بېلگه گرځېدلې ده، موږ بیا همدا نمونه په ذهن کې ساتو او خپل تاریخ پرې جوړوو. ددې حالت په اړه یوه اروپایي مورخ ویلي چې نوی تاریخ به څنگه رامنځته شي؟ ټول تاریخ د اروپا دی، د نرانو دی او سپین پوټکو دی.

ددې بېلگه داسې واخلئ چې کله لویدیځ وال مورخین د اسیا تاریخ لیکي؛ نو په ذهن یې د اروپا د تاریخ اصول او قواعد خپاره وي، مثلاً (سمیت) د برطانوي حکومت په وخت کې د هند تاریخ لیکه، هغه چې کله د گپت سمندر د نیولو یادونه کوي؛ نو هندي ناپلیون یې نوموي، که څه هم نیپولین له تاریخي پلوه په نوي دور کې دی. همدا حالت په نورو بېلگو کې هم ښکاري ، یانې موږ خپل مشران له شارلمین یا نورو اروپایانو سره پرتله کوو.

د همدې حالت له مخې اوسنی تاریخ هم په بېلابېلو دورو وېشل کیږي. په اروپا کې د مارکسستي وېش له مخې تاریخ په غلامۍ، جاگیرداري او پانگوالۍ دورو ویشل کیږي. اوس د هند مارکسستي مورخین د هند تاریخ هم په همدې دورو ویشي، چې دا کار یې سم نه دی. ځکه په هند

کې د غلامۍ او جاګیرداري دورې بیخي بل ډول وې، ډېر وخت وروسته بیا (کوسمبي) او نورو دا ستونزې هوارې کړې او د هند پخوانی تاریخ ېې په خپل بڼه ولیکه. دې حالت سره په هغه صورت کې هم مخ کیږو چې د لرغوني، منځني دور او نوي تاریخ نمونې (ماډل) په خپل تاریخ عملي کوو. په اروپا کې چې په دې دورو کې کوم ارزښتونه او اداري وې هغه دلته موږ نه لرلې. د اروپا فیوډالیزم یا جاګیرداري ددې ځای له جاګیرداري سره ډېر توپیر درلود. په همدې ډول د ویښتابه (Awakening) او روڼ اندي (Enlightenment) اصطلاحات زموږ په تاریخ کې عام نه وو. د اروپا د تاریخي ماډل د ټاکلو یوه ستونزه دا شوه، موږ چې د پرمختګ لپاره کومې دورې ټاکلې وې هغه هم اروپایي شوې، لکه د منځنیو پېړیو پای یا ریسانس وویل چې د مذهب د اصلاح تحریک مذهبي جمود مات کړ، د اصلاح له لارې یې اروپا ته پرمختګ ورکړ او د فرانسې انقلاب نوې اروپا جوړه کړه؛ نو اوس باید موږ د پرمختګ لپاره په همدې لارو لاړشو، چې لومړی د ریسانس دور وي، بیا د مذهب اصلاح او بیا وروسته د اروپا په څیر پرمختګ وکړو.

بیا وروسته د اروپا په څیر پرمختګ وکړو. له دې امله د ریسانس (نشاة ثانیه) دور اصطلاح ډېره مشهوره شوه، لکه د اسلام نشاة ثانیه د بنګال نشاة ثانیه او نور ... خو خبره تر دې مخکې لاړه نه شوه او ټولنه همداسې وروسته پاتې شوه. اوس پر دې ډېر ټینګار کیږي چې د کسب، صنعت او جمهوریت په مرسته پرمختګ کیږي، خو موږ ګورو چې یوازې د فابریکو په جوړولو د ټکنالوجۍ په ز یاتولو او د جمهوري ادارو په پرانستلو ټولنه نه بدلیږي. لامل یې دادی چې ذهن نه دی بدل شوی او دا مهمه مسأله ده چې ټولنیز ذهن څنګه بدل شي؟ ددې لپاره اړینه ده چې علم خپله هم وپنځول شي او د اروپا له پنځول شویو شیانو هم ګټه واخیستل شي، خو یوازې تقلید دې ترې نه کیږي.

خپل تاریخ دې پخپله جوړ شي، څکه نور خلک چې موږ ته زموږ د تاریخ په اړه څه وايي؛ نو خپله ټولنه به يې په ذهن کې د نمونې په توګه نيولې وي. په کوم نظر چې هغوی زموږ تاریخ او ټولنې ته ګوري د هغوی له ټول اخلاص سره به بيا هم نشي کولا ی موږ پوره درک کړي. په هند کې ځايي مورخين دا کار کوي، په ځانګړي ډول سبالټرن (subaltern) هڅه کوي چې د هند د مستعمره دورې وژل شوی تاریخ بيا راژوندی کړي، په ځانګړي ډول هغه اړخونه چې سترګې پرې پټې شوې وې. له اشرافي ليدلوري څخه د تاریخ ويستل او ټولنيز کول هم ددوی د اجنډا يوه برخه ده . دا کار زموږ تاریخ ليکوالو نه دی کړی، څکه د استعماري دور د مورخينو پر وړاندې ددوی حرکت ګړندی و او خپل هر ښه او بد روايت يې ستر ګڼلی دی. دوی دداسې تاریخ جوړولو هڅه کړې چې هيڅ بدي ونه لري له دې امله زموږ دا ملي تاریخ هم زموږ د ماډل يا نمونه نشي جوړيدی. په دې تاریخ کې راتلونکيو حکومتونو هڅه کړې چې خپل فساد پټ کړي او د خپلې واکمنۍ لپاره جواز ولټوي.

دا چې په پاکستان کې هيڅ تاریخي روايت نشته او تاریخ يوازې د حکومت د سم ښودلو لپاره ليکل کيږي؛ نو نه موږ تاریخ جوړوو او نه هڅه کوو چې په مرسته يې د ټولنې ذهن جوړ کړو. زموږ تاریخي ذهن د هغو موادو په مرسته جوړيږي چې بهرني تاریخ ليکوال يې راته ليکي، لکه موږ چې د خپلې اسانتيا لپاره راډيو، تلويزون او نور لوازم له بهر را راوړ و، همداسې مو تاریخ هم له بهره راځي. هغه خلک چې پر پوهې ملنډې ووهي، پوهه هم پرې ملنډې وهي او سپکوي يې.

# تاريخ : فتحه او ماته

تاريخ يوازې د جګړې د اتلانو له نظره ليکل کيږي، څکه مات شوي ولسونه په تاريخ ليکنې کې هم خپله دفاع نشي کولای او پکې ورک شوي وي. په جګړې ګټونکي ولسونه د جګړې لامل دا ښايي، چې هلته نا امني وه، سياسي انتشار و او د خلکو ژوند خوندي نه و. همدا خبرې تل جګړو ته اخلاقي جواز ورکوي. زموږ په تاريخ کې داسې ډېرې بېلګې شته،مثلا د بابر تر يرغل مخکې هند په څه حال و؟ مورخينو د کورنيو جګړو، نا امنيو، وژنو او ترور بې شمېره بېلګې وړاندې کړې. دا يې ثابته کړه چې د بابر په راتګ او د مغلي حکومت په جوړېدو هند سياسي او اقتصادي پرمختګ وکړ، رښتيا داسې وو؟ ددې دور له تاريخه مالوميږي چې هند بيخي له کوم ستر بحران سره مخ نه و او نه هم ټولنه دومره لوېدلې وه. همدې وخت کې ځايي حکومتونو يو ژوندی کلتور رامنځته کاوه، چې هغه د مغلو له راتګ سره په ټپه ودرېده.

وروسته انګريزانو هم همدا دليل ووايه، دوی هم د مغلو څوړ د هندي ټولنې څوړ وګاڼه او خپل حکومت ته يې اخلاقي جواز ورکړ. دا يې ثابته کړه چې ددوی تر راتګ مخکې هند له سياسي او اقتصادي بحران سره مخ و. دوی ټولنې ته امن او سوله راوړل. دلته هم تاريخ بيخي بدل دی، څکه اوس نوې څېړنې ښايي چې په اتلسمې پېړۍ کې هند له سياسي او کلتوري پلوه ښه ژوندی، قوي او پنځوونکې ټولنه لرله. سوداګري هم ښه ګرمه وه او هنرونو هم پرمختګ کاوه. يانې دا چې ټولنه پر ځای نه وه

ولاړه ، حرکت يې کاوه، خو په ټولنې کې د انګليسي ليکوالو دا نظر قوي و او اوس هم دی.

همدا حالت د سېند او پنجاب د برطانيايي فتوحاتو هم و، چې دا دواړه سيمې وروسته پاتې او مخ پر ځوړ ثابتې شوې وې. په پنجاب کې د سيکانو د حکومت په اړه د (سيک شاهي) اصطلاح مشهوره شوه او د انګريزانو له فتحې وويل شول چې مسلمانو يې په ځانګړې ډول ښه راغلاست کړی و. ځکه د سيکانو په حکومت کې پر مسلمانانو ظلم کېده...چې انګريزانو ترې خلاص کړل. دا خبره د پنجاب مسلمانو مشرانو وکړه او د انګريزانو حکومت يې پر ځان يو نعمت وګاڼه. دا تاريخي فرضيې بايد ماتې او تر شا پټ حقيقت يې روښانه شي.

که ګټونکی ولسونه خپل تاريخ هر څومره په خپلې ګټې وليکي، خو په ماتې خوړولو کې چې کوم قدر او عزت وي هغه ترې نشي اخيستی . مثلاً معزالدين غوري د (تراين) په جګړې کې (پرتهوي راج) ته ماتې ورکړه، هغه په جګړې ښه په زړورتيا وجنګېد او مړ هم شو. (پرتهوي راج راسا) نومي کتاب (چند براويي) ليکلی او په اړه يې ويل کيږي چې دا د پرتهوي راج په وخت کې ليکل شوی، بل نظر دا دی چې کتاب په اولسمې پېړۍ کې ليکل شوی دی. په دې کتاب کې ځانګړې خبره دا ده چې، د پرتهوي راج ماته نه منل کيږي او پکې ثابته شوې ده چې معزالدين غوري د پرتهوي راج په غشي مړ شوی دی، په پرتهوي راج راسا کې داسې ليکل شوي چې:

"راجا د شاعر په اشارې باچا ته مخ کړ، لينده يې په لاس کې واخيسته او د باچا اشارې ته په تمه شو، د باچا په اشاره يې ښنه ونيوله، په لومړۍ اشاره يې غشی برابر کړ، په دويمه اشاره يې لينده کش کړه، په درېيمه اشاره يې د باچا ستونی وځيره او باچا ځای پر ځای ولويده. شاعر غوښتل

راجا ځان وژنې ته چمتو کړي، هغه وویل چې زه دا کار نشم کولای، د باجا په مرګ ګډوډي جوړه شوه، په همدې وخت کې (کوی چند) خپله چاړه غوځوي او هماغه چاړه راجا ته ورکوي او پرتهوي راج د هماغې چړې په مرسته ځان وژني".

ددې کیسې او اصلي پېښې تر منځ توپیر شته خو په کیسې کې شته ښکلا، تلوسې او هنر دا کیسه په راجپوتانو کې مشهوره کړه او د ترایڼ جګړې ماته یې یوه غمیزه وګرځوله، چې پکې د معزالدین غوري پر ځای پرتهوي راج اتل وګڼل شو.

داسې یوه کیسې د یوګوسلاویا په سربیانو کې هم شته چې په ۱۳۸۱ ز کال کې شهزاده لازار د عثماني امپراتورۍ له خوا ماتې خوري،دوی دا ماته په یوې روحانې فتحې بدله کړه او کیسه په سربیانو کې په دې ډول مشهوره شوه، چې د جګړې په لومړۍ شپه شهزاده لازار ته ( عالي جاه) نومې پرښته راغله، دا مالومات یې ترې واخیستل چې دی غواړي جګړه وګټي او پر ټولې نړۍ حکومت وکړي؛ یا شهید شي او د جنت ته لاړ شي. شهزاده د خپل ولس لپاره شهادت غوره وباله، د جګړې پر مېدان ماته، سربیانو ته په روحانې فتحې بدله شوه او لازار دوی ته (روحاني مشر) شو. په تاریخ کې ورته بېلګې شته، خو له ټولو دا ثابتیږي چې ګټه او تاوان څنګه بدلیږي.

تاریخ له حقیقي تر څنګ تخیيلي او روماني هم وي، چې اسطورې جوړوي او خلک په خپلې اغېزې کې بند ساتي.

# جهوريت يا ديموكراسي

سياسي، اقتصادي او ټولنيزې ادارې او روايات د زمانې، وخت او ټولنې د اړتياوو له مخې جوړېږي. ګڼه يې تر هغه وخته وي چې له حالاتو سره سم کار وکړي. که حالاتو سره مزل نشي کولای؛ نو زوال پرې راځي. په دې صورت کې اداره او ارزښت يا بايد ورغول شي او يا يې پر ځای نوې ادارې او ارزښتونه رامنځته شي. که جمهوريت له دې زاويې لولو، پر دې پوهېږو چې جهوريت يا د جمهوريت ادارې په يوه حالت او صورت ندي پاتې شوي.وخت سره بدلېږي اوچاپيريال سره ځان برابروي. په دې توګه له پېړيو راهيسې دا اداره زموږ په منځ کې ښه په قوت سره پر مخ روانه ده.

د نړۍ په نږدې هرې ټولنې کې جمهوريت په ابتدايي بڼه روان وي، مثلاً کله د ملکي، کله د جرګې يا مشورې او کله د مجلس په بڼه وي. په دې پرېکړو کې د ټولو خلکو رضا اړينه نه وي، مشر ته پکې ډېر اهميت ورکول کېږي، فکر کېږي،چې د ژوند د تجربو له مخې سمه پرېکړه کولای شي. پخوا ابادي لږه او ښارونه واړه وو، دا شونې وه چې خلک سره راټول شي، بحثونه وکړي او په پرېکړو کې برخه ولري.

د جهوريت په اړه نظرياتي بحث له يونانه پېل شو. د يونانيانو ستونزه دا وه چې له ناامنۍ، انتشار او کورنيو جګړو وېرېدل، ځکه دې يې د ژوند پر ټولو چارو اغېزه کوله. دوی داسې سياسي نظام غوښته، چې په ټولنه کې نظم راولي. د خپلې تجربې له مخې يې په ټولنې کې درې نظامونه په دوراني بڼه وموندل، مثلاً په شاهي نظام کې ټول واک يوه کس ته ورکول

کېده. تر واکمنۍ وروسته باچا د خپل سر و. دې سره په ټولنې کې شخړي او ناوتریخوالی پېدا کېده. بیا ټولنې پر دې فکر وکړ،که څېرې ټول واک د یوه کس سره وي؛ نو په ټولنې کې ستونزې رامنځته کیږي. ددې لپاره یې اولګارکي (ځوسري) نظام رامنځته کړ. په دې نظام کې واک ځو کسانو ته ورکړل شو، خو تجربه شوه چې دا ډول وېش هم ستونزې راولاړوي او کار پر مخ نه ځي. د ځو واکمنو خپل منځي ستونزو او شخړو ټول نظام اغیزمن کاوه او په ټپه یې ودراوه. تر دې تجربې وروسته دیموکراسي (جمهوریت) غوره شو. په هغه وخت کې د جمهوریت تصور بدل و، د یوناني ښاري حکومتونو غلامانو پکې برخه نه لرله. په دې نظام کې دا تجربه وشوه، چې د ټولنې زیاتره وګړي د نالوستۍ او ساده توب له کبله تیروځي. ځو ځیرکو او چالاکو سیاستمدارو د خپلې وېنا په زور دوی له ځانه سره ملګري کړل او د جمهوریت پر ځای یې خپل آمریت رامنځته کړ. یوناني مفکرینو فکر کاوه چې جمهوریت تر ټولو بد نظام دی، خلک پکې برخه نه اخلي او له امله ګډوډي او انتشار رامنځته کیږي. بله دا چې له دې حالته په ګټې اخیستې آمریت یا شاهي نظام راوړلایږي. خلک چې له دې نظامه تنګ شي بیا اولیګارکي (ځو سري) نظام رامنځته کیږي او همدا دوران کوي.

یونان کې له یوې خوا سیاسي تجربې کېدې او له بلې خوا د همدې سیاسي تجربو له مخې مفکرینو نوي نظریات وړاندې کول. دوی پر دې فکر کاوه چې کوم نظام به ټولنې کې نظم راوړي او له انتشاره به یې وساتي؟ مثلاً افلاطون په خپل کتاب (جمهوریت) کې وایي چې په ټولنې کې دې د شتمن او بیوزله تر منځ توپیر نه وي. د ټولنې د پاینښت لپاره دې عدل وي. ارسطو دې ته پام وکړ چې د سیاسیونو ځیرکتیا او د عوامو قوت څنګه یو ځای شي. ده ویل که شاهي نظام، ځو سري او جمهوریت

سره ګډ شي، درې واړه وړتیاوې او قوتونه په سره متحد شي او د کورنۍ، دولت او وړتیا اتحاد د سیاسي استحکام لامل کېدای شي . یونان کې په ۳۲۲ ق م کال کې د ارسطو له مړینې سره سم د ښاري حکومتونو زوال پیل شو او په نړیواله سحطه رومیانو خپل تسلط واچوه. د رومیانو د حکومت چوکاټ د یونانیانو په څېر ښاري نه و. دوی د لویې امپراتورۍ بڼه لرله، چې درې برخې یې لرلې. کونسل د شاهي نظام تر ټولو ستره دنده وه چې باچاهۍ ته ورته وه. تر دې وروسته سینټ و چې د امرینو نماینده ګي یې کوله او ورپسې بیا اسمبلۍ یا جرګې وې چې د رد او تائید رایې به یې ورکوله. دې درې واړو ادارو د چیک او بېلانس په مرسته کار کاوه.

د رومیانو له زوال وروسته په اروپا د فیوډال ابزم دوره راغله چې پکې ټول واک یوازې د فیوډال (جاګیردار) سره و. دا وخت په انګلستان کې د جمهوریت خواته یو مهم ګام پورته شو. په ۱۲۱۵ز کال کې د باچا او فیوډالانو تر منځ یوه تړون وشو، چې (میګنا کارټا) یا لوی تړون یې باله. په دې تړون کې پرېکړه وشوه چې د پارلمان له خوښې پرته به هېڅ ډول مالیه نه وضع کیږي. تړون ددې مهمې مادې تر څنګ ٦٣ نورې مادې هم لرلې، څو پکې د وې چې قانون به عملي کیږي، بې له لامله به څوک نه نیول کیږي او په محاکمو کې به پرېکړې جیوري هیئت کوي.

تر دې وروسته د انګلستان د باچا او پارلمان تر منځه د واک ترلاسه کولو جګړه ونښته. ورسره دا مهمه پوښتنه راولاړه شوه چې په انګلسان به څوک حکومت کوي؟ د همدې شخړو په لړ کې په اولسمې پېړۍ کې د باچا او پارلمان تر منځ کورنۍ جګړه پېل شوه. باچا مات شو او پارلمان ورته له هیواد سره د خیانت په جرم د مرګ سزا ورکړه، دې کار د پارلمان واک تر باچا زیات کړ.

د انګلستان په تاریخ کې دویمه مهمه پېښه د ۱٦۸۸ ز کال ستر انقلاب

و، چې پارلمان پکې د هالنډ باچا ( ویلیم) او ملکه (میري) راوغوښتل او واک یې ورتسلیم کړ. ورسره دا قانون هم جوړ شوچې. د باچا پاکلو واک یوازې پارلمان لري. دا پېښه خکه مهمه وه، چې تردې وخته باچا بول واک او قدرت د خدای له لورې ترلاسه کاوه او د ملت پر وړاندې د خواب ورکولو هېڅ مسولیت یې نه درلود. خو تر دې وروسته باچاهي الهی ورکړه نه ګڼل کېده او د ټاکلو یا لېرې کولو واک یې له پارلمان سره و، همدا نظریات یوه انګریز مفکر هابس (١٦٥٠ز) کې داسې وړاندې کړی وو، د ټولنې خلک ددې لپاره حکومت جوړوي چې ژوند یې خوندي شي او د همدې خوندیتوب لپاره دوی خپل واک یو کس، څو کسانو یا اکثریت ته سپاري. دا چې حکومت الهي نه وي او د خلکو په لاس جوړېږي؛ نو خلک دا واک لري چې بدل یې کړي. د هابس له نظره شاهي نظام تر ټولو غوره او ګټور و.

اتلسمه پېړۍ د اروپا په فکري تاریخ کې ډېره مهمه ده. څکه په همدې وخت کې اروپایي مفکریمو پر یوه داسې سیاسي نظام فکر کاوه، چې د وخت غوښتنو ته ځواب ووایي. د سوداګریزو لارو په موندلو او د سوداګریز پرمختګ له امله د سوداګرو او کسبګرو طبقه خواکمنه شوه، دا د ټولنې منځنۍ طبقه وه، خو شتمني، وړتیا او پوهه یې لرله او د همدې په مرسته یې په ټولنه کې د کورنیو شته انحصار ونګاوه. دوی داسې نظام غوښته چې ټولو خلکو پکې برخه لرلای. جان لاک به ویل چې مقننه اداره که د شاهي نظام هم وي؛ واک دې پرې د ولس د استازو وي. فرانسې کې روسو ویل چې ستر یا لوړ واک دې له ولس سره وي. د اتلسمې پېړۍ په پای کې د جمهوریت اداري په درېو سطحو کې وده وکړه. په امریکا کې چې د خپلواکۍ جګړه پیل شوه، دا مهم شعار یې هم ورکړ چې " له استازیتوب پرته هیڅ ډول مالیات نه ورکوو" تر خپلواکۍ

و. چې پارلمان يکې د هالنډ باچا (ويلم) او ملکه (ميري) راوغوښل او واک يې ورتسليم کړ. ورسره دا قانون هم جوړ شوچې، د باچا ټاکلو واک يوازې پارلمان لري. دا پېښه ځکه مهمه وه، چې تردې وخته باچا ټول واک او قدرت د خداى له لورې ترلاسه کاوه او د ملت پر وړاندې د ځواب ورکولو هېڅ مسوليت يې نه درلود. څو تر دې وروسته باچاهي الهي ورکړه نه ګڼل کېده او د ټاکلو يا لېرې کولو واک يې له پارلمان سره و. همدا نظريات يوه انګريز مفکر هابس (١٦٥٠ز) کې داسې وړاندې کړې وو، د ټولنې خلک ددې لپاره حکومت جوړوي چې ژوند يې خوندي شي او د همدې خونديتوب لپاره دوى خپل واک يو کس، څو کسانو يا اکثريت ته سپاري. دا چې حکومت الهي نه وي او د خلکو په لاس جوړېږي؛ نو خلک دا واک لري چې بدل يې کړي. د هابس له نظره شاهي نظام تر ټولو غوره او ګټور و.

اتلسمه پېړۍ د اروپا په فکري تاريخ کې ډېره مهمه ده. ځکه په همدې وخت کې اروپايي مفکرينو پر يوه داسې سياسي نظام فکر کاوه، چې د وخت غوښتنو ته ځواب ووايي. د سوداګريزو لارو په موندلو او د سوداګريز پرمختګ له امله د سوداګرو او کسبګرو طبقه ځواکمنه شوه. دا د ټولنې منځنۍ طبقه وه، څو شتمني، وړتيا او پوهه يې لرله او د همدې په مرسته يې په ټولنه کې د کورنيو شته انحصار ونګاوه. دوى داسې نظام غوښته چې ټولو خلکو يکې برخه لرلاى. جان لاک به ويل چې مقننه اداره که د شاهي نظام هم وي؛ واک دې پرې د ولس د استازو وي. فرانسې کې روسو ويل چې ستر يا لوړ واک دې له ولس سره وي.

د اتلسمې پېړۍ په پاى کې د جمهوريت اداري په درېيو سطحو کې وده وکړه. په امريکا کې چې د خپلواکۍ جګړه پيل شوه، دا مهم شعار يې هم ورکړ چې " له استازيتوب پرته هيڅ ډول ماليات نه ورکوو" تر خپلواکۍ

وروسته د امریکا په ادارو کې یوه ځانګړنه دا وه، چې د پخوانیوادارو له منځه وړل پکې اړین ونه ګڼل شول. ځکه هلته نه شاهي کورنۍ وه او نه آمرین چې امتیاز یې لرلای . د پرمختګ نښه پکې کورنۍ نه وه. زيار وړتيا او پوهه د پرمختګ معیار و او د همدې پر بنسټ يې جمهورې.اداري رامنځته کړې. ددې ادارو د رامنځته کولو بنسټيز اصول دا وو، چې وا ک دې په يوه ځای کې نه راټوليږي. ځکه د واک راټولېدو د امريت خطر پېښاوه؛ نو ځکه د مرکز او رياستونو واکونه وټاکل شول او د چیک او بیلانس اصول وضع شول.

په ۱۷۸۹ ز کال کې د فرانسې انقلاب راغی، شعار يې د (مساوات، ازادۍ او ورولۍ) و. پارلمان په همدې کال کې د ( ډیکلریشن رایټس آف مین) قانون پاس کړ. پکې ویل شوي وو چې ستر یا لوړ واک له ولس سره دی. په دې وخت کې د جمهوریت په مانا او مفهوم کې بدلون راغی، حکومتي دواير داسې جوړ شول چې ولس ته پکې ډېره برخه ورکول شوه. که څه هم په فرانسې کې سیاسي کمی زیاتی راته، ناپلیون پکې دمخه شاهي نظام او امریت وضع کړی و؛ خو په ۱۸۳۰ ز کال کې انقلاب دلته قانوني یا دستوري شاهي نظام رامنځته کړ او بیا د ۱۸۴۸ ز کال انقلاب جمهوريت رامنځته کړ. دریېم نیپلوین له جمهوري لارې واک ته ورسېد او ځان يې باچا کړ. د ۱۸۷۱ ز کال په جګړې کې یې ماتې وخوړه. دی له دې امله مهم دی چې په فرانسه کې پرې د شاهي نظام لړۍ پای ته ورسېده.

د اروپا په نورو هيوادونو کې جمهوريت لومړی د مشروطه شاهي نظام په مرحله کې رامنځته شو او بیا وروسته شاهي نظام له منځه لاړ او پوره جمهوري نظام رامنځته شو، اوس هم خیني ځایونو کې شاهي نظامونه شته، خو نر ډېره سمبوليکه بڼه لري.

په انګلستان کې شاهي نظام د د بیارغونې په مرسته وده وکړه. د انقلابي

حرکتونو د مخنیوي په موخه هلته پارلمان په مرحله وار ډول د جمهوریت داېیره پراخه کړه. په دې لړ کې په ۱۸۳۲ ز کال کې د ریفارم یا بیارغونې ایکټ یا قانون څکه مهم دی چې د بیارغونې یا اصلاحاتو دروزاه یې پرانسته او تر دې وروسته په پارلمان د امرینو انحصار په کمېدو شو.

په اوسني دور کې جمهوریت په ښو بڼو شته دی. ځینې خایونو کې پارلماني نظام دی او په ځینو نورو کې بیا ریاستي نظام دی؛ خو په دواړو صورتونو کې واک له ولس سره دی او په هرې ادراې کې ددوی نمایندګي ته ډېره پاملرنه کیږي. د بالغې راې ورکونې له مخې هره ښځه او نر د راېې ورکولو حق لري، چې د ټاکنو پر وخت کارول کیږي. د جمهوریت له تجربې وروسته دا پابله راوځي چې، که په کومې ټولنې کې جمهوري اداري څواکمنې وي؛ نو د آمریت مخه پکې نیول کېداي شي. له دې امله په هرې جمهوري ټولنې کې دا یو اصل منل شوی دی چې واک ټول له یوه کس سره نه وي، واک خپور او ویشل شوی وي او واکمن یو بل څاري چې څوک له واک څخه ناوړه ګټه پورته نه کړي.

# د ولسي مقاومت لارې چارې

که حکومتونه د خپلو ادارو په مرسته قوي او ځواکمن دي؛ نو ولس هم د خپلو حقونو لپاره له بېلابېلو لارو مقاومت کړی دی. په هند کې د ولسي مقاومت یا مزاحمت یوه لاره د (دهرنا) په نوم یادېده. دا چاره تر ډېره په پوځ کې کېده، ځکه تر انګرېزانو دمخه پوځ ته په منظم ډول معاش نه ورکول کېده. پوځیان به چې تنګ شول او بله لاره به نه وه، د خپل قومندان یا سپه سالار د خېمې مخې ته به کېناستل او (دهرنا) به یې کوله. هېڅوک به یې نه پرېښود چې خیمې ته تګ راتګ وکړي، بیا به مشر اړ شو چې پوځیانو ته د معاش غم وخوري.

دهرنا په اوسني نظام کې د ګهیراو (ولکې) بڼه خپله کړې ده. د ختیځ پاکستان په سیاست کې ترې مولانا بهاشاني ډېره ګټه اخیستې. دوی به وزیران یا نور چارواکي ګهیراو کول یانې تر خپلې ولکې لاندې به یې راوړل. اوس دا ټکی زموږ په سیاست کې ډېر عام شوی دی، هر ګوند یا ډله چې د حکومت پر ضد کوم حرکت کوي؛ نو پر پارلمان د ګهیراو یا ولکې اخطارونه ورکوي.

که څوک له یو چا سره ټولې اړیکې پرې کوي؛ نو په انګلیسي کې ورته (بایکاټ) ټکی کاروي. ددې تاریخ هم په زړه پورې دی.نولسمې پېړۍ ایرلینډي بزګران د انګریزو زمیندارو پر ضد جنګېدل. دې زمیندارو کولای شول بزګر له خپلو ځمکوشړي. ددې کار پر ضد ایرلنډ د (لینډلیګ) په نوم یوه ډله رامنځته کړه او دا پرېکړه یې وکړه که زمیندار له خپلو ځمکو

بزگر وشړ ي؛ نو بل هېڅوک به ورسره کار نه کوي. تر پرېکړې وروسته چې لومړي انگریز زمیندار بزگر له ځمکې وشاړه (کیپټن بایکاټ) نومېده. بایکاټ سره بیا نورو بزگرو کار نه کاوه او دا پرېکړه یې بایکاټ ونومول شوه.

د احتجاج پخوانۍ طریقه کاري اعتصاب (هړتال) و. دا یوه سوله ایزه چاره وه، چې کله به خلک د امرینو او باچا له ظلمه په تنگ شول؛نو غبرگون د ځرگندونې یوه چاره دا وه چې خپل کاروبار به یې بند کړ. له دې کاره به د ټولنې هر غړی اغېزمن کېده. حکومت به هڅه کوله چې دا کاري اعتصاب زر مات کړي او کاروبار بېرته خپل عادي حالت ته راوگرځوي. یوه یادونه مهمه ده چې د انگلیسانو تر راتگ دمخه په سند کې هندو سوداگرو کاري اعتصاب ددې لپاره کاوه، چې خپلې غوښتنې په نورو ومني. دوی ځکه بریالی کېدل چې ټول کاروبار ورسره و. د ښار کلي او باندېږو ټولې هټۍ به بندې وې. حکومت او اړوندې ادارې مجبورې وې چې خبرې ورسره وکړي او تفاهم ته سره ورسېږي.

اوس اعتصاب هغه خلک کوي، چې غواړي په حکومت فشار راوړي،ځکه اوس د کاروبار په بندېدو عام ولس نه اغېزمن کېږي او پر ځای حکومت له مالي زیان سره مخ کېږي. ځکه نو سیاسي ډلې د لاریو ن او اعتصاب وسلې کاروي او پر حکومت خپلې غوښتنې مني.

د مقاومت یا مزاحمت یوه بله بڼه د مزدوارنو کاري اعتصاب یا (Strike) دی، دا د لومړی ځل لپاره سوداگریزې ټولنې (Trade Union) وکړ. ځکه په پانگوال نظام کې مزدور تر هر چا ډېر زبېښل (استحصال) کېده. په غبرگون کې یې دوی خپلې ټولنې جوړې کړې او په مرسته یې خپل حقونه خوندي کړل. دوی کاری اعتصاب یا سټرایک هم وکاروه، چې په فابریکو کې کار بند کړي او خپل بادار ته زیان ورسوي تر څو ددې زیان له

امله هغه اړ شي چې د مزدورانو غوښتنې ومني. په لومړيو کې د مزدورانو کاري اعتصاب بې قانونه وګڼل شو او پر ضد يې سوداګرو او صنعتکارو توند غبرګون وښود. بيا چې وروسته (Trade Union) ټولنې قوي کېدې کاري اعتصاب هم قانوني بڼه خپلوله.

د يوه اروپايي مفکر (سوريل) په وينا، که څوک غواړي په فابريکه کې کاري اعتصاب وکړي؛ نو د نورو فابريکو مزدوران هم بايد ورسره ملګري شي، څکه په دې توګه پانګوال نظام کمزوری کيږي او د مزدورانو قوت زياتيږي، دې د جنرال سټرايک نظريه رامنځته کړه چې د خواخوږۍ اعتصاب هم ورته ويل کيږي.

اوس نو اعتصاب يوازې د تر مزدورانو محدود نه و، نورو مسلکي ډلو هم دا حربه کاروله. زده کونکو په تعليمي ادارو کې اعتصابونه کول. په ۱۹۶۰ ز کال کې د اروپا او امريکا د زده کوونکو د اعتصابونو له امله نصابونه بدل شول او په فرانسې کې د زده کونکو اعتصاب دويم انقلاب ونومول شو. څو زموږ په هيوادونو کې د مقاومت دا لارې چارې په منفي بڼه کاريږي. څو ډلې وېره خپروي، په خلکو لاريونونه او اعتصابونه کوي او غواړي دوی خپل امتيازات ترلاسه کړي. د مقاومت دا لارې چارې هله ګټورې ثابتېدای شي چې په ټولنې کې سياسي شعور پوخ او ذهن جمهوري شي، ګنې همداسې به د شخصي ګټو لپاره کاريږي او اخر به اغېزه ختمه شي.

## جمهوریت او ولسي مظاهرې یا لاریونونه

په شاهي حکومتونو کې واک یو کس یا کورنۍ سره وي. ولس بیوسه وي، لږ وخت د خپل غږ رسولو یوه لاره پیدا کولای شي. زیاتره باچایانو به عام دربار جوړاوه چې ولس ته ورسیږي. ځینو باچاهانو به د ولس خبرې اورېدې او د د درد دوا کولو هڅې به یې کولې. تاریخ کې دوی عادلو او مهربانو باچایانو په توګه یادیږي. ولس ډیر وخت دې دربارونو ته نشو تلای، چې ستړي او تنګ شول؛ نو بغاوتونه به یې پیل کړل. بغاوت په حکومت کې تر ټولو ستر جرم و او تر سختو سخته سزا به ورته ټاکل کېده.

د ولس د غوسې او احساساتو د ځرګندونې یوه لاره مظاهره یا لاریون و. دا مظاهرې یا لاریونونه به زیاتره د حکومت او امرینو پر ضد کېدل. په ښارونو کې به ځکه ډیر کېدل، چې به خلک ګن وو او به راټولېدل. تر شا به یې کوم منظم پلان نه و، د ولس غوسه او احساسات به ساړه شول او لاریون به پای ته ورسېد.

د ولسي لاریونواهمیت د فراسنې د ۱۷۸۹ ز کال تر انقلاب وروسته پیل شو.د پاریس خلکو پکې لومړی ځل د حکومت او چارواکیو پر ضد خپل قوت وښوده. د ۱۷۸۹ ز کال د جولایي په دریيمه نېټه ولس سره یو ځای شو او د (بېسټیل) په مشهورې کلا یې یرغل وکړ. باچا خبر شو، ویل یې (دا خو بغاوت دی). یو امیر ورته وویل (نه ا انقلاب دی). تر دې وروسته د پاریس خلک په خپل قوت پوه شول او د فرانسې انقلاب یې کامیاب کړ.

دا د فرانسوي تاریخ یادګار ورځ ده، چې ولس یې پلازمینې ته لاړ، باچا او ملکه یې په موټر کې سپاره کړل او ځان سره یې پاریس ته بوتلل.
فرانسې کې چې پارلمان جوړ شو، عام خلک به په ګالرۍ کې کېناستل او د سیاسیونو بحثونه به یې اورېدل. دوی به لیدل چې څوک څه وایي؟ څوک د ولس ملګری دی او څوک یې دښمن؟
د ۱۷۸۹ ز کال انقلاب د پاریس خلک د لاریونو دومره مینه وال کړل. سیاسي بحران به چې راغی، دوی به کوڅو او سرکونو ته راووتل، قدم په قدم به یې خنډونه جوړول، پوځ د حرکت مخه به یې نیوله. په ۱۸۳۰ او ۱۸۴۸ ز کلونو کې ولسي لاریونونو په ټولې اروپا کې شور جوړ کړ، تر دې چې ددې لاریونو له امله شاهي نظامونه یا وپرځېدل او یا قانون منلو ته اړ شول.
لاریونوه چې ډېر شول، حکومتونو ورسره د چلند لپاره په نویو تدابیرو او اصلاحاتو فکر وکړ. ۱۸۲۹ ز کال کې د انګلستان د پولیسو اداره رامنځته شوه،چې د ولسي لاریونونو مخه یې نیوله. تر دې مخکې د اروپا د ښارونو کوڅې تنګې وې او لاریون کوونکې پکې په اسانۍ پټېدای شول، بیا په ویانا، برلین، پاریس او نورو ښارونو کې لوی او پراخه سرکونه جوړ شول چې ولسي لاریونون پکې اسان خپل وشي.
حکومت د ولسي لاریونو د مخنیوي لپاره پلانونه طرح کول او ولس خپل قوت احساساوه. ولسي لاریونو زیاتره په سیاسي ډول د استعمار پر ضد وشول. مثلاً هند کې ګاندهي جې ولسي لاریونو ته نوی اړخ ورکړ. لاریونو کوونکو ته یې د عدم تشدد پالیسۍ له مخې وویل چې پولیسو سره دې تاو تریخوالی نه کوي، حتی که یې په کوتکو وهي او زندان ته یې اچوي دوی دې ورته چمتو اوسي. دې کار لاریون کوونکو ته نوی اخلاقي قوت ورکړ او په مرسته یې له انګلیسي یرغلګرو سره مبارزه وکړه.

د لاریونو د رهبری، لپاره باید سیاسیون ځیرک او د پراخ فکر لرونکي وي. که د ولس قوت بې ځایه وکارول شي، ضایع کیږي او که سالمه رهبري يې وشي ډېره ګټه ترې اخیستل کیږي. سیاسیون باید پر دې وپوهیږي چې تر څو ورځو لاریون کولای شي او تر څه وخته یې اقتصادي ستونزې د لاریون د مخه نه نیسي. په هند کې سیاسي مشرانو له همدې ولسي قوت څخه ګټه اخیستې او انګریزان یې مات کړي دی.

اوسني جمهوري دور کې ولسي لاریونونه جمهوری حق ګڼل کیږی او سیاسي ډلې یې په مرسته پر حکومت فشار راوړي چې د دوی غوښتنو ته ځواب ووايي. یوحکومت هم دا لایونونه نه خوښوي ، د مخنیوی لپاره یې اوبه او ګازونه کاروي.

د ولسي لاریونونو قوت هله ثابت شو چې د ایران د باچا پر ضد پېل شو. ورو ورو د باچا هغه ټولې اداري کمزورې شوې چې د قوت کیسې یې کېدلې او په اخر کې خپله باچا هم له هیواده وتښتېد.

ددې لاریونونو بل قوت په روسیه او ختیځي اروپا کې امرانه حکومتونه ختم کړل او خلکو د برلین دیوال داسې ونړاوه لکه په ۱۷۹۱ ز کال کې یې چې د بیسټېل جنګي کلا نړولې وه.

نن سبا په جمهوري هیوادونو کې لاریونونه سوله ایز وي. پر حکومت فشار راوړي او خپلې غوښتې له جمهوري لارو پوره کوي. خو په هغو ځایونو کې چې جمهوري ادراې کمزورې وي، دا لارویونونه تاوتریخوالي ته اوړي، دا لامل دی د درېیمی نړی چاروآکي له لاریونونو وېرېږي.

# رسالې او د سیاسي شعور کمپاین

د چاپخونو یا مطبعو رامنځته کېدل د انساني تاریخ یوه مهمه پېښه ده. په چاپخونو دې صنعت پوهه د څو کسانو له انحصاره خلاصه او عامه کړه. په چاپخونو کې کتابونه، ورځپاڼې او رسالې چاپ شوې او په خلکو کې یې سیاسي شعور پیدا کړ. بېلګې یې د امریکا او انګلستان په تاریخ کې لیدل کېږي، ددوی په تاریخ لیکنې کې ولسي اړخ ته ډېر پام کېږي او ښودل کېږي، چې په خلکو کې سیاسي او ټولنیزه ویښتیابه څنګه او له کومو لارو رامنځته شوه؟

امریکا کې په اتلسمې پېړۍ کې د انګلستان پر ضد د خپلواکۍ تحریک پیل شو. د لاس لیک او کتابت ټولنې چې جوړې شوې دې تحریک ته یې قوت ورکړ. دوی په سیاسي چارو رسالې لیکلې او پر خلکو وېشلې یا به یې د پوستې په مرسته رسولې. ددې رسالو په مرسته په خلکو کې سیاسي شعور پیدا شو او دا موقع یې ترلاسه کړه چې پر انګلیسي حکومت او پالیسیو یې وپوهېږي.

د فرانسې د انقلاب پروخت انګلستان کې یوه موچې د لیک ټولنه جوړه کړې وه، دې ټولنې هېڅ ډول محدودیت نه درلود او هر چاته پکې غړیتوب ورکول کېده. انګلیسي مورخ ای - پي ټامسن یې د اهمیت په تړی دا ښایي، چې د غړیتوب لپاره یې کوم شرط نه درلود، پداسې حال کې چې په همدې دورکې د هر ډول امتیاز لرلو لپاره د کورنۍ او جایداد شرط لرلو شرط حتمي و؛ خو دا چې په دې ټولنې کې د غړیتوب هېڅ

ډول شرط نه و؛ نو دا يې د جمهوريت لپاره يوه لاره هوارې کړې وه.
همدا لامل و چې حکومت ترې ووېرېده او د ۱۷۹۴ ز کال د مئي په ۱۲مه نېټه يې د هار ډې په کور عمليات وکړل، ټولې رسالې او ليکلي مواد ترې پوليسو ونيول ، پر ټامس هار ډې د ملي خيانت تور ولګېد او ونيول شو، وروسته بيا محکمې برأت ورکړ او د لندن ولس ورته د يوه اتل په حيث ښه راغلاست ووايه.
تر دې وروسته جمهورې ادارې ورو ورو قوي کېدلې او ورسره د وينا او ليکلو حقونه هم منل کېدل. په جمهوري ټولنو کې د حقونو په رڼا کې دوه ادارې رامنځته شوې. د رسالې او کتابچې په مرسته سياسي ګوندونو او ډلو خپل سياسي افکار او ليکونه تر خلکو رسول. ليکلې اوازې ځکه کاميابې شوې چې له يوې خوا په خلکو کې د زده کړو د زياتېدو له امله لوستونکي ډېرېدل او له بلې خوا همدې ليکلو موادو په دوی کې سياسي او ټولنيز شعور پېدا کاوه.
د پوسټ سيستم رامنځته کېدو هم خلکو ته د رسالو او ليکنو په رسولو کې اسانتيا رامنځته کړه. په مرسته يې ليکلي مواد ډېر زر له يوه هيواده بل ته لېږدېدل. که څه هم وروسته حکومت محسوسه کړه چې له دې لارې يې مخالفت ورځ تر بلې زياتيږي، بيا يې پرې سانسور ولګاوه او د باغيانه موادو د وېش او خپرېدو مخه يې ونيوله.
په امريکا کې چې د پوسټ يا ډاک سيستم پېل شو، په جنوبي امريکا کې غلامی رواج وه، د هغه ځای د پوسټ ادارې پرېکړه وکړه، چې د غلامۍ پر ضد مواد به نه لېږد وي.
دا پاليسي انګليسانو په هند کې هم عملي کړې وه، باغيانه مواد به يې سانسورول او له منځه به يې وړل. تر يوه وخته د پاکستان حکومت هم ګڼ ادب نه پرېښوده. له حکومته چې خلک مرور شول؛ نو پر ضد به

رسالې وليکلې چې پټې به لېږدېدې.

پر رسالو سربېره بله لار د خبرتياوو وه، هغه څه چې په رسالو کې په تفصيل وو، په خبرتياوو کې د شعار په بڼه ليکل کېدل. که به سياسي ازادي وه؛ نو خبرتياوې به ښکاره راځړېدلې. که نه به وه له پټو لارو چارو کار اخيستل کېده. د خبرتياو تر څنګ په ديوالونو د شعارونو ليکل هم رواج دی، ځکه خبرتياوې له دېوالونو راشکول کيږي او ددې ليکلو پاکول ستونزمن وي.

ددې ترڅنګ بله لاره چې سياسي شعور يې پېدا کاوه د مناظرو ټولنې يا (Debuting society)) وې. دلته به سياسي خلکو د هيواد په مهمو مسئلو بحثونه کول. ددې دايېره بيا محدوده وي، ځکه کوم خلک چې پکې برخه اخلي همغوی ترې ګټه هم اخيستی شي.

# د لاسلیک کمپاین

په شاهي نظام کې به ولس خپلې غوښتنې باچا ته دعریضې یا غوښتنلیک په بڼه وړاندې کولې. که باچا به یې غوښتنه ومنله، دا به یې پرې لوروینه او مهرباني وه او ولس به یې احسانمند و. دا حالت تر هغه وخته روان و چې یا شاهي نظام ختم شو او یایې واک. د جمهوریت ودې د قانون جوړونې واک پارلمان یا ولسي جرګې ته ورکړ، ځکه اوس ولس د خپلو غوښتنو لپاره دوی ته رجوع کوي. دا چې د ولسي جرګې غړي د ولس استازي وي او په کمپاینونو کې باید ولس ته راشي او رایه ترې وغواړي؛ نو د ولس فشار مني او غوښتنې یې اوري.

د ولس د فشار اچولو څو لارې دي، چې یوه پکې د لاسلیک کمپاین دی. سیاسي ګوندونه او ډلې پر حکومت او ولسي جرګې د فشار اچولو لپاره له دوو لارو کار اخلي: یوه د مقاومت او تاوتریخوالي لاره او بله د د سوله ایزو لاریونونو، غونډو، نیونې (ګهیراو)، اعتصاب او نور... بله طریقه دا ده چې په سوله ایزه توګه تر حکومته خپل غږ ورسول شي، چې په دې کې د لاسلیک کمپاین یوه اغېزناکه لاره ده. یانې دا چې غوښتنې ولیکل شي او له هغو ټولو خلکو پرې لاسلیک واخیستل شي چې له دې غوښتنو سره موافق وي.

دا کمپاینونه زیاتره په بازارونو، فابریکو، تعلیمي ادارو او نورو داسې ځایونو کې کېږي چې خلک ورته ډېر تګ راتګ لري. زیاتره غوښتنې په ښکاره ټکو لیکل کېږي، راځړول کېږي او بیا له خلکو غوښتنه کېږي چې

لاسلیک پرې وکړي. څومره چې خلک ډېر ملاتړ کوي، هغومره لاسلیکونه زیاتېږي او د غوښتنې اهمیت هم ورسره په هماغه کچه لوړېږي. تر دې وروسته دا غوښتنلیک حکومت یا ولسي جرګې ته وړاندې کېږي، چې د خلکو رایه مالومه شي او که وروسته دوی پرېکړه کوي چې د ولس رایو ته پکې احترام وشي.

داسې هم کیږي چې د لاسلیک په کمپاین کې د ټولو پر ځای له څو مشهورو او مخه ورو کسانو څخه لاسلیک واخیستل شي او بیا په چاپي رسنیو کې خپور شي، چې حکومت د موضوعاتو او پرېکړو په اړه د ولس له نظره خبره شي.

د انګلستان په تاریخ کې د لاسلیکي کمپاین یوه بېلګه په نولسمې پېړۍ کې د مزدورانو تحریک و چې چارټسټ (chartists) یې باله. دوی خپلې غوښتنې د غوښتنلیک په بڼه درې ځله تر ولسي جرګې رسولې دي. لومړی غوښتنلیک په ۱۹۳۹ز کال کې تر پارلمانه ورسېده. نږدې یو مېلیون خلکو پرې لاسلیک کړی او په یو موټر کې بار د پارلمان تر ودانۍ ولېږدلول شو، موټر پر دې ورځ ګلپوش شوی و. د ولسي جرګې یا پارلمان زیاتره غړي فیوډالان وو، دوی په خپل قوت تر پارلمانه راغلي وو او د ولس رایې ته یې اړتیا نه لرله، ځکه یې غوښتنلیک هم سمدستي رد کړ.

په ۱۸۴۲ ز کال کې د چارټسټ تحریک مشرانو بل لاسلیکي کمپاین پېل کړ، دا ځل یې نږدې درې میلیونه لاسلیکونه واخیستل او د یوې لویې ډلې په ملتیا یې تر پارلمانه ولېږداوه، د خوند اوتفریح لپاره د ساز غم هم ورسره شوی و؛ خو دا غوښتنلیک هم د لومړي هغه په څېر رد شو. ځکه د جاګیردارو پارلمان مزدورانو ته هیڅ ډول امتیازات نه ورکول.

د درېیم ځل لپاره په ۱۸۴۸ زکال کې د چارټسټ تحریک مشرانو درېیم لاسلیکي کمپاین پېل کړ او ویل کېږي چې دا ځل یې ٦ میلیونه

لاسلیکونه راټول کړي وو. پرېکړه وشوه چې غوښتنلیک به د یوه لوی لاریون په ملتیا تر پارلمانه لېږدول کیږي؛ خو دا ځل حکومت د ټېر په پرتله ډېر تیاری وکړ. په غونډو او لاریونونویې بندیز ولګاوه او یوزاي خو مشرانو ته یې اجازه ورکړه چې پارلمان ته راشي او خپل غوښتنلیک وړاندې کړي. دا لیک دومره اوږد و چې په دریبو موټرو کې باید لېږلو شوی وای؛ خو بیا هم پارلمان سمدستي رد کړ. وروسته بیا ولسي جرګې اعلان وکړ چې ددې غوښتنلیک زیاتره لاسلیکونه جعلي وو، د بېلګې په ډول د ملکې وکټوریه، رابرټ پیل او نورو مشهورو خلکو جعلي لاسلیکونه پرې شوي و. ددې اعلان موخه یوازې دا وه چې خلک باوري شي او دا ومني چې ددې کمپاین او غوښتنلیک تر شا د دومره ډېرو خلکو رایه نشته.

که څه هم لاسلیکي کمپاین ډېر ګټور ثابت نه شو؛ خو خلکو ته یې د سیاسي چارو په اړه خبرداری ورکړ او حکومت هم دا موقع ترلاسه کړه چې د ولس د یوې برخې په نظر پوه شي . که په ولسي جرګې یا پارلمان کې د خلکو خوښ او ټاکلی استازي وي؛ نو ددوی احترام کوي. دا چې زموږ په ټولنه خلک کې ټاکنې یوازې د خپل ذات او اثر رسوخ په مرسته ګټي؛ نو څکه هغوی دې غوښتنو ته ډېر پام نه کوي، دوی یوازې د خپلو ګټو ترلاسه کولو په لټه کې وي.

## زموږ مشران (رهبران)

په خپلې ټولنې کې چې د شخصیت پرستۍ او اتلولۍ اوسنۍ لیوالتیا وینو، دا پوښتنه راپیدا کیږي چې زموږ ټولنه ولې په اوسني جمهوري دور کې هم د شخصیت پرستۍ تر اغېز لاندې ده؟ ولې زموږ په ټولنه کې اشخاصو ته لومړیتوب ورکول کیږي؟ ددې د پوښتنې ځواب تر شا زموږ د ټولنې بڼه، جوړښت او طبقاتي وېش ښکاري.

په وروسته پاتې ټولنه کې چې د بدلون او اصلاح لارې بند شي یا د ټولنې سیاسي، ټولنیز، اقتصادي او کلتوري قوتونه ختم او خلک له ذهني پلوه مفلس شي. په داسې حالت کې خلک په تمه وي چې اوس به یو څوک راشي، معجزه به وښایي او ددوی ستونزې به حل کړي.

له دې حالته په ګټې چالاک، ځیرک او مداري شخصیتونه رامخته شي، دعوې کوي چې ستونزې به حل کړي. دا چې خلک نور هېڅ انتخاب نه لري، پر دوی باور کوي، مینه ورسره کوي او په پوره احترام ورپسې روانیږي. دا خلک یې تر دې حده په مینه کې ډوب شي او باور پرې کوي چې دا مشر بیا هر ډول فساد کوي، ملي ګټې تر خپلو ګټو خاوري او له خپل واک څخه ناوړه ګټه اخلي، خو د خلکو هیلې نه ختمیږي او ورپسې وي. فکر کوي چې همدا یې ژغورونکی او مسیحا دی او ددی په اړه پر هیڅ ډول فساد، بدۍ او کمزورۍ حتی باور نه کوي.

زموږ هیواد اوس له همداسې یو حالت سره مخ دی. حالات خراب دي، سیاسي ټولنیز او اقتصادي قوتونه کمزوري شوي دي، له حالاتو سره د

مبارزې وړتیا نه لري. خلک هم نهیلي دي، د حالاتو د بدلېدو تمه نه کوي، حتی پر خپلواکۍ هم بې باوره دي. د هېڅ ډول مبارزې، مقاومت، جګړې او هڅې قوت پکې نشته. یوازې خپل مشران او رهبران د خپل بخت واکدارن ګڼي. دا هماغه مشران دی چې دوی یې غولولي دي، کارولي یې دي، ددوی په مرسته یې واک ترلاسه کړی او اوس ترې یوازې د ځان لپاره ګټه اخلي.

په وروسته پاتې ټولنه کې شخصیتونه هغه لارې پیدا کوي چې ځان پرې له فساده وساتي. کله چې پرې د فساد تور ولګیږي، په دفاع کې یې ویل کیږي چې دا نیک، پاک او مسلمان انسان دی. پر فساد اصلي ککړ خلک تر دې لاندې خلک دي چې ستونزې جوړوي. همدا دلیل د تېر وخت د باچایانو په اړه هم لیدل کیږي، چې وایي هغوی ښه خلک وو؛ خو وزیران او د دربار نور مامورین یې په فساد ککړ وو. ددې منطق له مخې به باچا پاک انسان و او ګناه به یې ټوله د مشاورینو او مامورینو پر غاړه وه.

اوس زموږ مشران هم ښه خلک دي او ترې لاندې واړه خلک ټول فاسد ګڼل کیږي. میکاولي په خپل (باچا) نومې کتاب کې چارواکیو ته همدا مشوره ورکوي، چې تاسو خپله هېڅ مه کوئ ټول فساد او جرمونه پر خپلو مامورینو کوئ او بیا همدوی د فساد په جرم وژنی. یا یې له دندې شړئ.

همدا لامل دی چې نن زموږ فاسد چارواکي د خلکو په مخکې د خپلې پاکۍ او سپېڅلتیا خبرې کوي او له ساده ولس سره خپله مینه ښایي. ددې برعکس په هغو ټولنو کې چې جمهوریت واکمن دی او جمهوري اداري او روایات پکې شته د اشخاص د ادارو تر شا ولاړ دي. اشخاص خپل اهمیت نه لري، دوی بدلیږي رابدلیږي ، خپله دنده ترسره کوي او ځي. داسې ټولنو کې سیاسي اقتصادي او ټولنیزو بدلونونه د ادارو په مرسته او سطحه راځي، شخص پکې ځانګړی او مستقل واک او اهمیت نه لري.

په داسې ټولنو کې اداري تر اشخاصو ډېرې مهمې وي، که د کومې اداري مشر په کوم فساد کې ښکيل ليدل کيږي؛ اداري د خپلې بقا او نيک نامۍ لپاره له داسې اشخاصو ځان خلاصوي. سياسي ګوندونه داسې مشران له خپلو ګوندونو وباسي او داسې خلکو ته په ټولنه کې په بده سترګه کتل کيږي. په داسې ټولنو مشران، رهبران اړ وي چې ځان له فساده پاک وساتي او په هېڅ ډول بدۍ کې ښکېل نشي.

خو دلته حالت بيخي بدل دی، دلته اداري او سياسي ګوندونه د اشخاصو په ولکه کې دي؛ نو ځکه اهميت هم نه لري. همدا لامل دی چې دلته اشخاص د خپلو ټولو بديو او ککړتياو سره بيا هم د ادارو او ګوندونو مشري کوي او ځان تر ټولو اخلاقي ارزښتونو او قانون څخه لوړ ګڼي.

# ولس او حاکمان

اوس په بېلابېلو هیوادونو کې له شته کورنیو جګړو مالومات کیږي چې حکمرانان څه ډول د خپل ملت عزت، وقار او عظمت له منځه وړي. ولسونه په ډېر غربت او بیوزلۍ کې خپل عزت او وقار ساتي، خو دا رهبران یې د کورنیو جګړو له امله خیر ته کېنوي. ۱۹۹۶ ز کال کې دا لوبه په ډېرو هیوادونو کې وشوه، سومالیه د افریقا یو وړوکی هیواد دی، دا هیواد که څه هم تر کورنیو جګړو دمخه په اقتصادي لحاظ کمزوی و؛ خو خلک یې دومره غېرتي وو چې چاته لاس غځول یې په هیڅ صورت مناسب نه ګڼل. همدې کار ورته داسې یو ولسي مقام ورکړی و چې وقار او انساني عظمت یې درلود. په دې غریب خو غیرتي هیواد کې د دوو سیاسي ډلو تر منځ کورنۍ جګړه پېل شوه. دوی د هیواد ټولې عایداتي سرچینې په وسلو مصرف کړې، چې له امله یې خلک ورو ورو له خپلو لومړنیو اړتیاوو بې برخې شول او خبره تر قحطۍ ورسېده. خلک چې نور له لوږې مړه کېدل؛ نو د نړۍ پام ور واوښت او د لویدیځ شمتنو ورته د ترحم له مخې د خیرات په ډول خواړه او نور لومړني اړین توکي ور ولېږل.

دا مرستې چې دې وږیو تږیو خلکو ته ورسېدې، دوی پرې سرونه مات کړل. همدا له لوږې او بیوسۍ ډکه صحنه نړیوالو رسنیو ټولې دنیا ته وښوده.. د سومالیې غیرتي ولس چې تر اوسه یې چاته لاسه نه نیوه، د خپلو واکمنانو خپلې منځې جګړو دې حد ته ورسول، چې ټولې نړۍ ته یې رسوا کړل او حتی د انسانیت له درجې یې د حیوانیت تر درجې ته

وغورځول.

بله بېلګه يې افغانستان دی، چې د خپل غيرت او خوداري له امله د نړۍ وتلی ولس و، هلته هم چې دې مشرانو کورنۍ جګړې پيل کړې. نو خلک يې له خپلو بنسټيزو اړتياو بې برخې کړل. نن مليونونه کونډې، يتيمان او معذور انسان ژوند کوي. دا خلک اوس هم د مرستې او لاس نيوی څوک نه لري. سره صليب يا بلې اداري به چې مرستې کولې؛ نو غريبو او بېوزله خلکو به پرې سرونه ماتول.

همدا ډول صحنې د راوندا او زايرې هم ښودل کېږي، دلته هم وږي تږي او بېوسه خلک ولاړ وي، پر شونډو او څېرې يې د خفګان او بېوسۍ نښې له لېرې ښکاري. دوی د يو خېټه خوړو ترلاسه کولو لپاره د خوړو ويشونکو ستغې سپورې اوري، د پوليسو وهل خوري او د ژوند کولو لپاره هر ډول ذلت زغمي.

په داسې حالت کې ښځه تر هر چا ډېره ځوريږي، کورنۍ يې د خوړو ترلاسه کولو لپاره کاروي. يا يې کورنۍ پلوري او يا يې دې ته اړباسي چې خپل ځان وپلوري او کورنۍ ته يې د ژوند کولو لپاره خواړه پيدا کړي. ښځه چې د ټولنې د عزت او غيرت نښه وي، هغه هم په داسې حالاتو کې خپل عزت او پاکي نشي ساتلای.

په کورنيو جګړو کې له يوې خوا خوار ولس له ياد حالته تېريږي او له بلې خوا د واک ترلاسه کولو لپاره جګړې روانې وي. ولس کور نه لري، خواړه نه لري حتی د ځان پټولو لپاره جامې نه لري؛ خو د ولس دې حالت ته له پامه پرته د واک ليوني سره خپلو کې جګړې کوي. ښارونه ورانيږي؛ خو دوی د واک تر لاسه کولو لپاره په جګړو اخته وي. د درېيمې نړۍ ستونزه دا ده چې عايدات د ولس د زده کړو، روغتيا او پرمختګ پر ځای په دفاع مصرفيږي او دا دفاع په اصل کې د ولس نه؛ يوازې د واکمنو او د هغوی د

شتمنیو وي. په دې ټولې لوبې کې د لویدیځې نړۍ منافقت څرګند دی. چې له یوې خوا د واکمنو په لاس بېبوزله شویو خلکو ته خواړه رالېږي او له بلې خوا یې فابریکې وسلې جوړوي او پر همدې جنګسالارانو یې پلوري. د زهرو او تریاکو دا ګډون عجیبه نسخه ده، چې د درېیمې نړۍ د درملنې لپاره کارېږي.

# ولس او چارواکي

په اتلسمې پېړۍ کې د صنعتي انقلاب له امله په انګلیسي ټولنې کې ژور بدلونونه راغلل. د فابریکو شاوخواته د مزدورانو خام او چټل کورونه جوړ شول. بېوزله خلک له کلیو څخه ښار ته د کار لپاره راتلل او مجبور وو چې د لږ معاش په بدل کې په فابریکو کې کار وکړي. دا خلک د سختو حالاتو له امله مجبور وو، چې خپل کلي پرېږدي او د یوې مړۍ ډوډۍ ګټلو لپاره ښار ته راشي. اقتصادي بحران به تل په بېوزله مزدوانو او کاریګرو راته او همدوی پکې له بېکارۍ، لوږې او ناخوندیتوب سره مخ کېدل.

که به یې ستونزې چا حل نه کړې، خپله به یې حل لارې لټولې. د صنعتي انقلاب پر وخت وړاندې شوي نظریات تر ډېره د پانګوالو په ګټه وو. مهمه دا وه چې حکومت د پانګوال او مزدور تر منځ ستونزې کې مداخله نه شوه کولای او دوی باید خپلو کې حل کړې وای. ترڅنګ یې حکومت دا مسولیت هم نه لاره، چې خلکو ته زده کړې ورکړي او د بېکارۍ ختمولو لپاره یې کار وکړي یا ورته خواړه برابر کړي.

پانګوالو له مزدورانو ناوړه ګټه پورته کوله، چې له امله یې ټولنې کې د جرمونو کچه لوړه شوه.

انګلیس مورخ ای - پي ټامسن وایي په اتلسمې پېړۍ کې د صنعتي انقلاب پر وخت د لندن نفوس یو ملیون (لس لکه) کسان وو. پنځوس زره ښځاګرې (طوایفې) او پنځلس زره پکې غله وو. څینې داسې خلک هم وو چې له دې غلو به یې د غلا سامان اخیسته او پلوره. د ټولو شمیره نږدې

یوسل او پنځوس زرو (یو نیم لکو) کسانو ته رسېده.
چا به چې ځمکه نه لرله سیاسي حق یې هم نه و. د همدې لاملونو له مخې لندن ښار د سیاسي جرمونو، فساد او ناارامۍ مرکز ګرځېدلی و. امتیاز لرونکي او شتمن د عامو او بېوزله خلکو له دې حالته ووېرېدل. ځکه ترې لږ مخکې په ۱۷۸۹ زکال کې د فرانسې انقلاب شوی و. شاهي نظام یې راپرځولای و او چارواکي یې له امتیازه بې برخې کړي وو. واکمنه طبقه په دې فکر کې شوه چې ددې ټولنیز فساد مخه څنګه ونیول شي؟ ایا بیوزله او بې جایداده خلکو ته ځینې اسانتیاوې ورکړل شي؟ یا په جرمونو سخته سزا وضع شي؟
یوه لاره یې دا وه چې په بیوزله خلکو کې د مذهبي تعلیم په مرسته صبر او قناعت پېدا شي. مشهور سیاستوال او د ولسي جرګې غړي ( ایډمنډ برک) ویلي وو( بیوزله خلکو کې د مذهبي تعلیم په مرسته صبر او قناعت پیدا شي چې د پرمختللي ژوند لپاره هڅې ونه کړي، تر دې ډیر تعلیم او وېنا ته اړتیا نشته). د عام ولس له ناارامۍ او بیوزلۍ څخه په ګټه اخیستنې ځینو مذهبي ډلو د خپلو عقایدو تبلیغ پیل کړ چې د خلکو راتلونکی ژوندښه شي او خلک په همدې تمې ددوی له ډلې سره یو ځای شي، پر دې موخه په اتلسمې پېړۍ کې بې شمېره مذهبي ډلې راڅرګندې شوې.
نه کلسیا غوښتل او نه واکمنو چې خلک دې سیاسي شعور ولري. دوی ویل که خلک زده کړې وکړي او لیک لوست زده کړي، باغیانه افکار به ورسره پېدا شي. د حکومت او کلیسا پر ضد لیکل شوي کتابونه به ولولي چې حکومت او کلیسا ته ستونزې جوړېدلای شي.
وروسته بیا واکمنې طبقې د امن،خوندیتوب او پرمختګ لپاره په خلکو کې سیاسي شعور اړین وباله او د زده کړو اجازه یې ورکړه.

د انګلستان ولسمشر (ډزرايلي) په ۱۸۷۴ ز کال کې بيا خلې واک ترلاسه کړ. ده د خپلو تجربې له مخې وويل چې، د انګليسي ټولنې د پابښت قوت لپاره د شاهي نظام، کليسا او امرينو د طبقې جدي اړتيا ده؛ خو دا اداري بايد خپل واک د خلکو او په ځانګړي ډول د مزدوري طبقې د اسانتياو او پرمختګ لپاره وکاروي. ۱۸۷۲ ز کال کې په مانچستر کې د يوه وينا په لړ کې ده زياته کړه چې ( پاکه هوا، پاکې اوبه او په چټلو کورنو کې پاک خواړه ... دا د ولس اړتيا ده، د وزيرانو لومړی مسوليت دا دی، چې د خلکو روغتيا ته پام وکړي).

ډزرايلي فکر کاوه که واکمنه طبقه د اصلاحاتو په مرسته عام ولس سره مرسته وکړي؛ نو د خلکو ژوند به ښه شي او له امله به يې په دواړو طبقو کې يووالي رامنځته شي. ده وويل ( که د غريب په جونګړه کې خوښي نه وي؛ نو ماڼۍ ناخوندي ده).

په همدې حالاتو کې د انګلستان حکومتونو د مزدورانو ګټو ته پام وکړ او بېلابېل اصلاحات يې راوړل، چې پکې د فابريکو د اصلاحاتو سربېره د عامې روغتيا، خواړو او درملو کې د نه ګډون قوانين پاس شول. تر څنګ يې په ويانو نهرونو کې د چټليو د غورځولو پر ضد قانون جوړ شو او نور مهم اقدامات وو چې په دې پېړۍ کې وشول. په خلکو کې د پوهې د خپرېدو تر څنګ کورونو ته پاکوالی راغی، ښه خوړو يې روغتيا ښه کړه، د بې روزګارۍ پر ضد اقداماتو اقتصادي ستونزې حل کړې او ټولنه د يوه نوي قوت سره پر مخ روانه شوه.

آيا موږ او زموږ واکمن به له دې تاريخه سبق واخلو؟

# سیاست او دسیسه (سازش)

دسیسه هغه طریقه یا لاره ده، چې په مرسته یې څو کسان غواړي په پټ او مرموز بدلون راوړي. بدلون که ددوی شخصي ګټه وي او کله بیا په شعوري ډول د حالاتو بدلولو هڅې کیږي. که څه هم سازش یا دسیسه په منفي مانا او مفهوم کاریږي؛ خو داسې پېښې چې ترې مثبته ګټه اخستل شوې ده.

دسیسې په هغو ټولنو کې ډېرې کیږي، چې د سیاسي بدلون لارې بندې یا لږې وي. په شاهي دور کې د سیاسي بدلون تر ټولو ګټوره لاره همدا وه . په اردو ژبه کې د محلاتي سازش ( د ماڼۍ دسیسه) اصطلاح مشهوره ده. څکه سیاسي کورنۍ یا په جګړې بدلېدله یا په دسیسې، مثلاً د هند په تاریخ او په ځانګړي ډول د سلاطینو په دورې کې دا دسیسې ډېرې وې. جلال الدین خلجي کیقباد ووژه، علاءالدین یې د خور زوی و. ده په یوې دسیسې کې خپل ووژه او په ګدۍ کېناست. د اکبر له مړینې وروسته ځینې امرینو دسیسې جوړې کړې چې د جهانګیر پر ځای دده زوی خسرو پر تخت کېني. د جهانګیر له مړینې وروسته نورجهان غوښتل دسیسه وکړي. که څه هم ددې ورور آصف خان د شاه جهان پلوي و. د شاه جهان په ناروغۍ کې دارا او اورنګزیب د پلویانو لاس و او جګړه یې د تاریخ مهمه پېښه ده. تر اورنګزیب وروسته دسیسې ډېرې شوې او ایسټ انډیا انګلیسي کمپنۍ ترې ګټه پورته کړه. وېل کېده چې په ۱۸۵۲ ز کال کې انګرېزانو ډیلي ښار محاصره کړ. د بهار شاه ظفر

مېرمن زینت محل له انګرېزانو سره په دې دسیسه کې لاس درلود چې زوی یې باچا وټاکي.

په شاهي دور کې دا دسیسې یوازې تر ماڼیو محدودې وې او ولس سره یې کومه اړیکه نه لرله، بدلونونه هم یوازې تر ماڼیو وو. د دسیسې د ناکامۍ په صورت کې د ښکیلو کسانو د مرګ وېره ډېره وه. ځکه دوی لږ بخښل کېدل او د خیانت په تور به یې تر ډېره ځورول.

د پاکستان تر جوړېدو وروسته د محلاتي (ماڼیزو) دسیسې لړۍ دلته هم روانه وه. هغه خلک چې ناڅاپه واک ته رسېدلي وو؛ نه یې غوښتل چې واک یې له لاسه لاړ شي. دوی نه پرېښوده چې جمهوري اداري ریښې وغځوي او قوي شي. دوی د سیسو په مرسته غوښتل خپله د واک دوره وغځوي. غلام محمد (ګورنر جنرال) د همدې په مرسته ولسي جرګه ختمه کړه، ولس مشر یې لرې کړ او د خپلې خوښې خلک یې په لوړو ځایونو وګومارل. په ټولنې کې چې دسیسې د بدلون یوازینۍ لار شي، د واک تږي باید له همدې لارې کار اخلي. همدا لامل دی چې دلته اوس هم دسیسې روانې دي.

غلام محمد په یوې دسیسې کې سنکدر میرزا لېرې کړ. ایوب خان د یوځې دسیسې په مرسته غلام محمد له هیواد وشاړه، خپله ایوب خان د بټو د سازش ښکار شو. بټو د ضیاالحق په دام کې ونښته او بیا اتلسم قانوني ترمیم د دسیسې په توګه وکارېد چې په مرسته یې دوه ځله بېنظره او یو ځل نواز شریف له واک لېرې شول. اوس د دسیسو په مرسته د واک ترلاسه کولو جګړه ښه ګرمه روانه ده .

ددې سیاسي سازشونو یا دسیسو اغېزه دا شوه، چې د ولس او سیاسي بدلونونو تر منځ واټن رامنځته شو. ولس فکر کوي په دې بدلونونو کې مېنځ لاس او واک نه لري. که څه هم وخت پر وخت ټاکنې کېږي خو دا

ټاکنې د ولس رایه نه ټاکي. واک ترلاسه کونکي پوهیږي چې د بوې دسیسې له مخې یې واک تر لاسه کړی. هغه کوي هغه خلک خوښ وساتي، چې ورسره مرسته یې کړې او واک ته یې رسولی دی. په دې توګه هغه د ولس د رایې قدر نه کوي یوازې د خپل خان شهرت او ګټو په اړه فکر کوي.

ولس له سیاسته بېزاره شو، هر حکومت چې رامنځته کیږي دوی یې د کورنۍ یا بهرنۍ دسیسې پایله ګڼي. د ولس او واکمنې طبقې تر منځ هېڅ اړیکه نه وي. چاوراکي د ولس له حسابه نه ډاریږي او ناوړه کارونه یې ورځ تر بلې زیاتیږي.

په ټولنې کې جمهوري ادارې هم خپلې ریښې نشي غځولای. د همدې کمزورۍ څخه په ګټې سیاسیون، رسمي چارواکي، مامورین او د ټولنې نور متعبر خلک د خپل ټول فساد سره بیا هم په ټولنې کې خپل مقام ساتي او لا یې هم قدر کیږي. موږ له تاریخ څخه همدا سبق اخلو، چې تر څو سیاسي ډلې، استخباراتي شبکې او ادارې د سیاسي سازشونو په مرسته بدلونونه راوړي؛ تر هغه وخته به ټولنه د سیاسي انتشار او فساد ښکار وي. د ټولنې د قوت او استحکام لپاره د جمهوري ادارو او ولسي راې قدر او درناوې اړین او بنیادي توکي دي.

## سياسي مخالفت

په شاهي نظام، آمريت، ټولواکۍ او نظرياتي حکومت کې سياسي مخالفت تر ټولو ستر جرم ګڼل کيږي. که څوک په سياسي ډول د حکومت پر پاليسۍ نقد وکړي يا وغواړي چې کمزوري او منفي اړخونه يې راڅرګند کړي؛ نو دا کس، ډله يا ګوند باغي ګڼل کيږي او سزا يې مرګ، بند او شکنجه ده. دلته دا پوښتنه راولاړيږي چې نقد يا سياسي مخالفت ولې نه زغمل کيږي؟ ځواب يې دا دی چې باچا يا آمر ولسي محبوبيت يا ملاتړ نه لري. ويريږي چې دا مخالفت او نقديې کمزورۍ راښکاره نه کړي او واک په خطر کې ونه لويږي. په نظرياتي هيواد کې نقد ځکه نه زغمل کيږي، چې د نظريې کمزوري ترې راڅرګنديږي او په خلکو يې شته اغېز له منځه ځي.

همدا حالت په مستعمره دور کې هم و چې سياسي مخالفت سخت وځپل شو. هلته هم د وېرې يو لوی لامل دا و چې واکمنو هڅه کوله د نظام مخالف او منتقد پيدا نه شي. دوی غوښتل هغه خلک رامخته شي چې د يوه فکر له مخې د رامنځته شوي هيواد ملاتړي وي. (لکه پاکستان او اسرائيل)

په دې نظامونو کې د مخالفينو د ځپلو لپاره حتی مرګ او ځورول هم شته . دا سزا ګانې د دوو موخو لپاره ورکول کيږي: لومړی په سياسي حرکت لرونکي کس کې روحي اوځاني دواړه قوتونه ځپل کيږي. دويم د نورو خلکو ته د نمونې په بڼه ښودل کيږي يانې که مخالفت يا نقد يې وکړ؛ نو

داسې سزا به ورکول کیږي. یوازې پر همدې قناعت نه کیږي، ددې ترڅنګ یې کورنی، ملګري او خپلوان هم له اروایي پلوه وېرول کیږي.
سیاسي خلک او کارمندان ددې لپاره ځورول کیږي، چې له سیاسته لاس واخلي. کوم خلک چې ددوی په اړه وپوهیږي یا څه ولولي؛ نو دسمدستي وېریږي او له سیاسته لاس اخلي. حکومتونه همدا غواړي چې خلک غلي وي او ددوی په کار کې کار ونه لري.
د ځورولو او فشار تر څنګ بله لاره د خیانت تور دی،. دوی جاسوسان، د هیواد دښمنان او ترهګر ګڼل کیږي او په ولس کې یې دفعالیتونو په اړه په خلکو کې کرکه او دښمني پیدا کوي. په پایله کې هغه خلک بدنامیږي چې د هیواد ګټې او پرمختګ لپاره کار کوي.
په جمهوري نظامونو کې سیاسي مخالفت ته ډېر پام کیږي، خو په هغو هیوادونو کې چې جمهوري ادارې پکې کمزورې وي، هېڅ ډول نقد نه زغمل کیږي او په واک کې خلک غواړي چې خپل سیاسي مخالفین وویروي. په هیوادونو کې چې سیاسي ادارې قوي او ځوکمني وي مخالف حزب ته څکه اهمیت ورکول کیږي چې د واکمن حزب پر چارو څارنه کوي.
دلومړي ځل لپاره په اتلسمې پېړۍ کې د انګلستان هیواد د مخالف حزب ونډه د حکومت لپاره اړینه وګڼل شوه او په ولسي جرګې کې مخالف حزب ( بزمجستېز اپوزیشن) ونومول شو.دې سره ورو ورو سیاسي مخالفت وزغمل شو، تر دې چې د ټولنې یوه مهمه برخه وګڼل شوه. که مخه یې نیول شوې وای یایې پر ضد قوانین وضع شوي وای؛ نو د ټولنې لخوا به یې سخت مخالفت کېده.
د همدې نقد برکت دی چې هلته چارواکي حاظر دي ولس ته حساب ورکړي. دې کار سره په هغو ټولنو کې د انسان دوستۍ او انساني حقولو

په اړه شعور لوړيږي. فرانسې کې چې د ډايګال په وخت کې د الجزاير ستونزه رامنځته شوه، د هغه ځای پوهانو او سياسي کارمندانو بې د ازادۍ غوښتنه وکړه او پر دې غوښتنې هېڅا هغوی د هيواد دښمنان ونه ګڼل . د ويتنام د جګړې په اړه تر ټولو ډير مخالفت په امريکا کې وشو او حکومت يې اړيسته چې له جګړې لاس واخلي.

له دې مالوميږي چې د ټولنې د پاکولو او ورغتيا لپاره ېکې سياسي مخالفت او نقد اړين دی. ځکه له دې سره په ټولنې کې روغ روايات رامنځته کيږي او بې ګټې اداري ختميږي. په منتقدينو د هيواد سره د خيانت تور لګول د هغو واکمنو خبرې دي، چې غواړي مخالفت وځپي او خپلې شخصي ګټې خوندي وساتي.

زموږ هيواد نن له همدې حالت سره مخ دی. بايد فکر وکړو که موږ سياسي مخالفت وځپو بيا د واکمنو د فساد او بدۍ پر ضد څوک غږ وباسي؛ نو سياسي مخالفت ته د حوصلې ورکولو تر څنګ دې ترې ملاتړ هم وشي.

# ولس او پولیس

شاهي نظامونه مخالفت په زور ختموي او جمهوري يې په خبرو اترو. که جمهوري نظامونه هم ستونزې د خبرو اترو پر ځای د ټوپک په زور حل کړي، له امله به سیاسي انتشار او نا امني رامنځته شي.
که د قانون تطبیقوونکې ادارې د سیاسي موخو لپاره وکارول شي، پاېلې به يې منفي وي. تر ټولو ستر زيان به يې دا وي چې ددوی او نورو خلکو تر منځ به دښمني او کرکه پیدا شي. د پوځ او پولیسو اصلي هدف د قانون حاکمیت، د خلکو خوندیتوب او د امن راوړل وي. که د دوی نوم يو وار بد شو او خلکو ته يې بد تصویر وړاندې شو، خلک يې غله او وژونکي ګڼي او ټول به ددوی پر وړاندې ترهه ګر، ورانکاري او د هیواد دښمنان وي. که د خلکو تصویر داسې شي، بیا ورته جزا ورکول، پرې تیرى کول او نور ټولو ځورول جایز ګڼل کیږي.
کراچۍ کې ټول خلک ترهه ګر ګڼل کیږي، د یوې سیمې ټول خلک نیول کیږي او تیری پرې کیږي. د ولس او ادارو تر منځه تصعب کینه او شخړې ورځ تر بلې زیاتیږي او دواړه یو بل دښمنان ګڼي.
دا حالت یوازې تر کراچۍ محدود ندی، د پولیسو په نظر کې د عام ولس اهمیت کم شو، سپک او حقیر ورته ښکاره شو، ددوی له زړونو د عام ولس احترام، وقار او عزت بیخي ووته. په پنجاب کې هره ورځ داسې پېښې کیږي، چې پولیس پکې له ولس سره مخالفانه چلند کوي، لکه په تهانو کې په مېرمنو تیرى، د هغوی لوڅول او ځورول په نظارت خونو کې د

بندیانو بې حده وهل او نور...
که قانون پلي کوونکې اداري داسې وګڼي چې تر قانون لوړې دی، هر شکمن کس نیولای شي او حتی په لاریونونو کې خلک وژلای شي او یکې د ولس پر وړاندې د مسولیت احساس له منځه ځي. یوازې له خپل واکه ناوړه ګټه پورته کوي او د خلکو هر ډول لوی او وړوکی مخالفت سخت ځپي.

موږ داسې ډېرې بېلګې لرو چې ستونزې یکې یوازې د زور زیاتي او فشار په مرسته نه دي حل شوي. اسرائیل له کلونو راهیسي فلسطینیان ځپي؛ خو تراوسه پورې، په دې ندي بریالي شوي چې خپلې موخې ته ورسیږي. په سریلانکا کې د حکومت او تامیلیانو جګړه شته. په جنوبي افریقا کې بالاخره حکومت اړ شو چې د تشدد پالیسي پرېږدي او خبرو ته سره کېني. همدا حال د هند په کشمیر سیمه کې هم دی؛ خو هغوی په زور د ولس هیلې نشي ځپلای او همدا سبق موږ له کراچۍ هم اخلو، چې د تشدد پر ځای د خبرو اترو لار غوره او ګټوره ده. که نه؛ نو د قانوني پلي کوونکو ادارو او ولس تر منځ به واټن ورځ تر بلې زیاتیږي،بالاخره به دا د جمهوري ادارو د کمزورې سبب شي او کیدای شي چې پای یې ته یې هم ورسوي. ځکه دا اداري چې د قانون په دایېره کې نه وي؛ هېڅوک به نه داسې نه وي چې حساب ورسره وکړي او دوی ته به ټول جمهوري ارزښتونه او روایات بې معنې وي، دا کار تر یوه حده اوس هم شوی دی؛ نو د جمهوریت د ساتنې لپاره اړینه ده چې په سیاسي ډول ددې ادارو د کارولو مخه ونیول شي او د ستونزو سیاسي او سوله ایز حل ولټول شي.

# ځارونکي او ځارګرې ادارې

حکمرانې طبقې کې پخوانی وي او که اوسنی، دا وېره لري چې واک یې په خطر کې ونه ولوېږي. دوی تل د خپل واک ساتلو لپاره په ولس ځارنه کوي، په ځانګړي ډول هغه ډلې او ګروپونه چې سیاسي شعور ولري او دوی ته ترې خطر جوړېدای شي. په دې صورت کې دوی د ځارګرو ادارو رامنځته کولو ته اړ کیږي. زیاتره حکومتونه د همدې ځارګرو ادارو په مرسته خپل واک ساتي، ځکه ددوی په مرسته دسیسې ډېرې زر او حتی له پیل سره سمې له منځه وړي.

ځارګرې ادرای لرغونی تاریخ لري. د هند مشهور سیاسي مفکر ( کوټیله) په خپل کتاب کې (ارت شاستر) کې لیکلي، چې د حکومت د استحکام لپاره ددې ادارو شتون اړین دی.

هغه د ځارونکو یا جاسوسانو د ګومارولو په اړه باچا ته په مشوره کې وایي، هغه خلک وګوماره چې ځیرک وي، له ښو کورنیو وي، د څو ژبو تر څنګ یې ډېر شمیر هنرونه هم زده وي. دا خلک دې باچا د وزیرانو، مامورینو، عابدینو، کوتوالو او د ښاري حاکمانوپه فعالیتونو لپاره وګوماري. بیا راځا ته مشوره ورکوي چې ځارونکي دې پخپله وګوماري او دا کسان دې بیا د شاګردانو، جوګیانو، سوداګرو، سادوګانو، زده کونکو او بدمعاشانو په ښه کار وکړي.

نظام الملک طوسي د سلجوقي کورنی وزیر و، هغه هم پخپل ( سیاست نامه) نومي کتاب کې د ځارګرو په شتون ټینګار کړی دی، چې باچا یې په

مرسسه له حالاتو څخه خبر وي.

د باچاهۍ یا امریت په دور کې ددې ادارو اهمیت ډېر زیاتیږي، په ځانګړې ډول هغه وخت چې دا حکومتونه په ولس کې محبوبیت ونه لري. په دې حالاتو کې د وی په جاسوسانو او څارګرو ډېره تکیه کوي. مثلاً علاءالدین خلجي چې خپل کاکا وواژه او باچا شو؛ نو پر خپل ضد د دسیسې وېره ورسره ډېره زیاته وه. هرې خواته یې خپل جاسوسان خپاره کړل. د هغه وخت یو مورخ ( ضیاالدین برني) لیکلي " د بغاوتونو وېره وه، ددې لپاره یې د جاسوسانو یو جال خپور کړ، تر دې حده چې د خلکو ښو او بدو یوه خبره هم له علاالدین څخه پټه نه وه، د مامورینو په کورونو کې به چې هر څه کېدل خبر به یې د جاسوسانو په واسطه تر باچا رسېده. امرین او چارواکي له دې نظامه دومره وېرېدلي وو چې په خپلو کې یې ښکاره خبرې هم نه شوې کولای، خبرې به یې په اشارو او کنایو کې سره کولې، پخپلو کورنو کې به شپه او ورځ د جاسوسانو له راپور ورکولو څخه وېرېدل، نه یې داسې کار کاوه او نه یې داسې خبره کوله چې نیوکه به پرې کېدای شوه".

په اوسني دور کې ناپلیون څارګرې ادارې په نوي خط منظمې کړې. دې څارګرې ادارې د خپلو سیاسي مخالفینو د ځپلو لپاره وکارولې. تر دې وروسته دویم کس چې څارګرې ادارې یې ښه او منظمې وکارولې د اسټریا چانسلر (میټرنک) و. ده د فرانسې تر انقلاب وروسته له نویو افکار او نظریاتو څخه وېره لرله. ددې لپاره یې پوهنتونو کې جاسوسان وګومارل چې د ښوونکو او محصلینو د فعالیتونو په اړه ده ته خبر ورکوي. تردې چې له کتابتون څخه د اخیستل شویو او لوستلیو کتابونو احوال به هم ورکول کېده. په پوهلګې کې استادان او محصلین کوم بحثونه کوي او نور... خو دې پوهلو یې واک ونه ساته او په ۱۸۴۸ ز کال کې له ویانا څخه تېښتې ته اړ شو.

په نويو امرانه حکومتونو کې څارګره اداره ډېره مهمه وه. هټلر مسوليني او ستالين د ټول حکومت انحصار يوازې خپله درلود. دوی له سياسي مخالفينو وېره لرله او هڅه يې کوله چې هغوی په نښه کړي او ويې وژني. په بر صغير کې هم يرغلګر حکومت د سي اي ډي او نورو څاګرو په مرسته هڅه کوله چې خپل شته سياسي مخالفت کړي. د مستعمره دور دا ادارې نن هم زموږ په ټولنې کې کار کوي. ځکه تر يوه وخته زموږ حکومته امرانه و، چې سياسي ازادي پکې نه او سياسي مخالفت پکې جرم و. ځکه دې نظامونو د څاګرو ادارو په مرسته وځپه او فاسد يې وګانهه.

وېل کيږي چې زموږ په هيواد کې اوس هم شل څارګرې ادارې شته، چې د باشعوره خلکو په فعاليتونو څاري او راپوروونه يې ورکوي.

اوس د ساينسي او فني پرمختګونو له برکته دې ادارو ته لا ډېرې اسانتياوې ورکړل شوي دي. د خلکو غږ ثبتول، ليک سانسرول او حتی د خلکو شخصي او کورني فعاليتونه څارل هم ددوی مسوليت ګرځېدلی دی.

په ټولنې کې چې څارګرې ادارې دومره قوي شي خلک د څنګ له ملګرو هم ويريږي. د بيان بنديز په خلکو کې د نورو تخليقي کارونو مخه هم نيسي. انسان د يوازيتوب ښکار کيږي او شخصيت يې ورځ تر بلې کم رنګه کيږي. په داسې ټولنې کې نه فرد خپله څه پنځولای شي او هڅه کولای شي، چې شته وراسته ټولنيز زنځيرونه مات کړي او نوي درو ته ننوځي. دا اروايي اغېزې ټوله ټولنه ناروغه کوي، خلک چې هر کار کوي وېره پکې احساسوي. ترې دې چې خپلو څلورو خواو کې ورته د څاګرو ادارو کارکوونکي ښکاري، چې ددې پر فعاليتونو څارنه کوي. په داسې چاپېريال کې خلک خپل باور له لاسه ورکوي او حکومت ورته د دوست پر ځای دښمن ښکاريږي.

# ولې فساد؟

په هرې ټولنې کې فساد درې لاملونه لري: د واک ترلاسه کول، ټولنیز مقام لوړل او د لومړنیو اړتیاوو پوره کول. په دې کې تر ټولو ککړ خلک د حکمرانې طبقې هغه وګړي وي، چې غواړې له یوې لارې واک ترلاسه او ډېر کړي. دا کار ډېرې شتمنۍ ته اړتیا لري، دوی غواړي هغه ټول وسایل وکاروي، چې واک پرې ترلاسه کېدای شي. غواړې له هرې ممکنې لارې شتمني ترلاسه کړي، هغه وکاروي او په بیا په هرې روا او ناروا لارې لومړی واک ونیسي.

دا فاسد خلک خپله هم په فساد کې ککړ وي او د خپلې شتمنۍ په مرسته نور خلک هم په فساد ککړوي. په ځانګړي ډول هغه واکمن چې په دسیسې یې واک ترلاسه کړی وي او واک یې د سیاسي سیالانو له لورې په خطر کې وي. دوی په شاهي نوکرانو، خدماتو، ادارو او نورو ځایونو کې خپل ملاتړي پیدا کوي او هغوی ته موقع ورکوي چې په هرډول فساد کې ښکېل شي. ځکه فاسد او رشوت خور انسان د حیثیت له پلوه دومره خواریږي، چې د خپل بادار هره خبره منلای شي.

د فساد یوه ځانګړنه دا ده چې د انسان حیثیت ختموي او غوړه مال کوي یې. په هغه کې شته غیرت او خوداري له منځه وړي، دا ډول خلک د حکمرانې طبقې د ګټې لپاره له هرې خوا چمتو او ګټور ثابتېدای شي.

فساد واک او قوت ترلاسه کولو لپاره کیږي او نږدې هرې ټولنې کې شته دی. په لوړه سطح نړیوالو قردادونو، بهرنیو مرستو، د وسلې په پېر او

بلور، برمختیايي پروژو او حکومتي چارو کې رشوت اخیستل کوي. دوه
بېلګه یې د حکومتي ادارو اخیستي پوروونه دي، چې بیا بسل کوي. ددې
ډول فساد او رشوت مسولین د هیواد ککړه واکمنه طبقه ده.

دویم ډول فساد هغه دی چې د ټولنې مخه ور خلک یکې سکېل وي
ددوی موخه دا وي چې په ټولنې کې لوړ ټولنیز موقف ترلاسه کړي. ددې
ټولنیز موقف څرګندونه بیا نوي موټر، لوی کورونه، اپارتمانونه، د بچو سه
زده کړې، مېلمستیاوې او بې ځایه لګښتونه وي. دوی لومړی په پولي
کې ښه موقف ترلاسه کړی بیا خپل ټول فساد د همدې موقف تر شا
پټوي. د نیک شهرت لپاره د ریا ډکې صدقې او خیراتونه کوي چې خپل
شهرت بې داغه کړي، په دوی کې زیاتره ستر حکومتي چارواکي، قاچاق
وړونکي او زیاتره ستر سوداګر شامل وي.

د فساد درېیم ډول دا دی چې عام خلک یې د خپلو بنسټیزو اړتیاو پوره
کولو لپاره کوي. بیې چې لوړې شي، خلک له خپلو لومړنیو اړتیاو سی
برخې شي، حکومت یې غم نه کوي، تقاعد نه ورکول ... لنډه دا چې د
خلکو لګښتونه تر عایده لوړ شي په دې صورت کې خلک د خپل ژوند د
بقا لپاره فساد ته مخه کوي او اړ کیږي چې له یوې لارې خپلې اړتیاوې
پوره کړي. دا لاره که روا وي که روا؛ خو د اړتیاو پوره کول یکې اصلي شرط
دی. مثلا یو عادي مامور یا پیاده خپل عاید د رشوت په مرسته تر خپلو
لګښتونو رسوي. د برښنا بل یې تر معاش لوړ وي، هغه باید له مېټر
لوستونکي سره خبرې وکړي، مېټر وروسته کړي او خپل بل راکم کړي. په
دې توګه نن سبا زموږ په ټولنې کې د ټیټو طبقو د ژوند لپاره فساد او
رشوت اخیستل یو مهم شرط ګرځېدلای دی او هر څوک هڅه کوي چې
له یوې لارې ورځ تر بلې زیاتېدونکې لګښتونه پوره کړي. په دې حالاتو
کې ستونزمنه ده چې څوک پاک پاتې شي، ځکه که پاک پاتې کیږي،

بیوزله به وي، بچي به يې ښې زده کړې نه شي کولاي، د درملنې لپاره به ښه درمل نه لري، د کمو او ناسمو خوړو له امله به يې روغتيا په خطر کې وي، نه به خپل ژوند ښه کولای شي او نه په هېڅ صورت له ژونده خوند اخیستلای شي.

ځکه په ټولنې کې پاکي او سپڅلتیا هم خپل حد لري. خبره چې تر ټاکلي حده ډېره خرابه شي، بیا هر انسان اړ دی چې فساد ته مخه کړي؟ (دا به په دې مانا نه وي چې بیوزله خلک دې فساد ته مخه کړي او یا د حل یوازینۍ لار همدا ده؛ خو دا پوښتنه شته چې ددې خلکو د خراب اقتصادي حالت په بدل کې څوک مزې کوي؟ او د چا ژوند د یوه عادي انسان تر ژونده څو چنده لوړ دی؟ دا انسان څوک فساد ته اړباسي؟ او هیواد او ټولنې په سطحه څوک د دومره ډېرو انسانانو حقونه اسانتیاوې په خپل جېب کې اچوي؟ که یو د یوه پاک انسان بچي زده کړې نه شي کولای؛ نو د چا اولادونه د لویدیځ په پوهنتونو کې درسونه او په زرګونو ډالرو جېب خرڅ ورکول کیږي؟ که یو عادي مامور فساد کوي، څوک يې پرې کوي؟ او ولې يې کوي؟ که موږ هغه کسان وپېژنو؛ نو ددې ټول فساد پړه یوازې پر هماغو سترو مفسدو اچول کیږي.) ژباړن

نو په داسې حالاتو کې به زموږ په ټولنې کې د فساد پر ضد روانې چغې څه ګټه ولري؟!

# فساد او ټولنه

که زموږ په ټولنې کې روان بد ټولنیز، سیاسي او اقتصادي حالت ته وګورو او په ټولنې کې شته ناروغیو، فساد، ناپوهی، بیوزلی او نورو نیمګړتیاوو ته فکر وکړو؛ نو دا پوښتنه راولاړیږي چې خلک ولې غلي دي؟ ولې دا هر څه زغمي؟ ولې یې یوازې سرونه ټیټ کړي او ژوند کوي؟ ولې ددې حالت پر وړاندې پاڅون نه کوي؟ ولې پرېږدې چې ددوی ټول انساني حقونه د څو فاسدو جېب ته لاړ شي؟ په تاریخ کې داسې ډېرې بېلګې شته، چې حالات داسې خراب شوي دي، ولس یې پر ضد پاڅون کړی، بغاوت یې کړی او حکومت یې راپرځولای دی.

موږ چې ددې پوښتنې ځواب ولټوو؛ نو د ولس د بې شعورۍ، بې حسۍ او ناپوهۍ تر څنګ یکې د ټولنې طبقاتي وېش هم مطرح دی. د لوړې طبقې خلک شتمني، واک او ځواک لري او خپل شته امتیازات د خپل کورني مخور توب او رسوخ په مرسته ساتي او همدا یې په ټولنې کې د بریا راز دی. ددې برعکس ولس د خپل ژوند تېرولو لپاره په خپلو خولو کې ډوب دی او ددې حالت په اړه دفکر کولو هېڅ وخت نه لري. د بېو لوړوالی، انفلاسیون، جرایم او نا امني دومره ده چې د ټولنې هر فرد یوازې د ځان او کورنۍ د ژوند په اړه فکر کوي. ددې ټول قوت پر دې مصرفیږي چې څنګه خپلې کورنۍ ته نفقه برابره کړي. که د اړتیاوې په قانوني ډول پوره نه شي؛ نو فرد مجبور دی چې له بې قانونه لارو یې پوره کړي. په دې توګه فساد که په هر ډول وي، زموږ په ژوند او ټولنې کې بې

ریښې غځولې دي. هر څوک هڅه کوي چې له هرې ښې او بدې لارې خپل عاید لوړ کړي، چې له امله یې په خواره کې ګډون، بې کیفیته درمل، رشوت، غلا، ترور، سرقت او د خلکو غولول او داسې نورې کاروبه یوازې د پیسو ترلاسه کولو لپاره کیږي.

په دې کې داسې چالاک او ځیرک خلک هم پیدا کیږي چې ډلې جوړوي ، په نویو لارو او خبرو خلک غولوي او پیسې ترې شکوي. له دې حالته دا پایله راوځي چې په خلکو کې د سپما شوق ختمیږي، ځکه ټول خلک په ټولنه کې د سپما په شته لارو، سرچینو او ادارو بې باوره شول ( زموږ په ټولنه کې یې بېلګه کابل بانک دی. ژ). بانکونه دیوالیه کیږي، د غلا او ټګۍ خبرونه هره ورځ خپریږي، د انفلاسیون له امله پیسې خپل ارزښت له لاسه ورکوي، د غلا او سرقت د پېښو له امله کورونه ناخوندي وي؛ نو ځکه عام ولس نه غواړي چې پیسې له ځان سره وساتي. ( چې د پانګې لېږد ( فرار سرمایه) د همداسې یوه حالت زېږنده ده. ژ)

د فساد یو زیان دا دی چې خلک هڅه کوي له غیر قانوني لارو پیسې ترلاسه کړي او ډېر پام یې همدې ته وي، چې له امله یې په رسمي کارونو سترګې پټوي او کارونه شاته پاتې کیږي. واړه او عادي مامورین په خپل معاش ګوزاره نشي کولای ددې لپاره په نورو ځایونو کې اضافه کاري کوي یا هم له رسمي وخت وروسته ځانته د عاید لپاره یو کار برابروي، دې سره یې له خپل کار او ماموریت سره مینه کمیږي او نورو کارونو ته ډېر پام کوي.

دا چې اوس مامورین د رشوت او واسطو له مخې ګومارل کیږي؛ نو په دوی کې خپل منځي سالم رقابت هم نه وي چې له امله یې دوی او کارنه ورځ تر بلې سستیږي. دوی پر دې پوهیږي چې دوی د لوړو مقاماتو له خوا ګومارل شوي دي او هماغو یې ساتنه کولای شي، خپل کارونه پرېږدي او

ورځ هغوی ته په غوړه مالۍ تېروي. خان دومره ټيټ او پست کړي چې بيا هر ذلت زغملای شي. دا غوړه مالي او ټيټ پاس کېدل انسان ذهن دومره ټيټ او پست کړي چې بيا ورته په ټولنې کې هېڅ ډول بې عدالتۍ نه ښکاري او د انتقام اخيستلو هېڅ ډول جذبه پکې نه وي.

زموږ په ټولنې کې د طبقاتی نظام له امله د ځان ساتلو او کار ترلاسه کولو لپاره يوه سرپرست ته اړتيا پېښيږي، چې دا سرپرستان بيا د خپل ملاتړ په بدل کې د وفادارۍ، مننې او غوړه متقابله تمه لري. له دې امله بېوزله او اړ خلک د خپل سرپرست لپاره هر ډول جرم کولو ته چمتو کيږي. دا سرپرستان چې ګټې يې ددې اړو او بيوزله خلک په وجود کې خوندي وي، غواړي نظام همداسې روان وساتي او ددوی په شته ګټو کې هېڅ ډول بدلون رانشی.

حکومت هم دا فاسدې او ناوړه لارې چارې ځکه زغمي، چې چارواکي پکې ښکېل وي. په ټولنې کې چې د فساد ريښې قوي شي او چارواکي يې ملاتړ کړي، د ټولنې ټول خلک فساد خواته مخه کړي او غواړي له دې لارې خپل ژوند تامين کړي. د فساد ختمولو خبره چې وشی، په فساد کې ښکيل هر وګړی ځان په خطر کې ويني او هڅه کوي چې د فساد پر ضد هره مبارزه ددې لپاره ناکامه کړي چې ددوی کاروبار همداسې روان وي. نو دې پايله ته رسيږو چې تر څو پورې ټولنې کې فساد د خلکو اړتياوې پوره کوي، تر هغه وخته يې پر ضد مبارزه او حرکت هم ناشونې دي.

په ټولنې کې پر فساد سربيره چې يو ډول خلک تورن ګڼل کيږي چې رشوت اخلي، خو رشوت که يو کس اخلي، بل کس يې ورکوي. رشوت دوه ډوله خلک ورکوي: يو هغه وي چې په ادارو کې د خپل کار زر خلاصولو لپاره رشوت ورکوي او بل هغه دي چې د غير قانوني کارونو ترسره کولو لپاره

رشوت ورکوي، لکه د قراردادونو اخیستلو، د مالیې معافي او نور ... .
ځینې نور سوداګر چې په موادو کې تقلب کوي یا بې کیفیته مواد پلوري، دوی هم د خپلې دفاع لپاره دولتي مامورینو ته رشوت ورکوي. دوی د رشوت په اړه کوم منفي فکر نه کوي او دا د خپل کار خلاصولو لپاره ښه لاره ګڼي.

په ټولنې کې رشوت تر هغه وخته بد نه ګڼل کیږي چې خلکو ته ګټه رسوي، ځکه دا د دوو اړخونو تر منځ یو جوړجاړی وي او پر ضد یې هېڅ ډول غږ نه پورته کیږي. د رشوت پر ضد یوازې هغه وخت غږ پورته کیږي چې د کوم کس قانوني کار بې له رشوته نه کیږي یا هم یوه کس ته خپل ضمیر او اصول د رشوت ورکولو اجازه نه ورکوي.

په ځینو ټولنو کې رشوت ته جواز ورکول کیږي. ځکه وایي چې د مامورینو معاشونه کم دي، که دوی رشوت واخلي او خپلې اړتیاوې پوره کړي کارونه به زر خلاصوي او په دې توګه به ټولنه پرمختګ وکړي، چې دا پرمختګ د سوداګریزو او نورو ګټورو فعالیتونو لپاره اړین دی.

خو یوې خبرې ته باید پام وشي چې په رشوت کې اخیستل شوې پیسې دولت ته نه ځي، مامورین یې اخلي او خپلو جیبونو ته یې اچوي، په دې صورت کې هیواد بیوزله کیږي او یو شمیر محدود خلک ورځ تر بلې شتمن کیږي.

هغه پیسې چې باید د هیوادوالو د هوساینې او پرمختګ لپاره وکارول شي محدود فاسد کسان یې د خپلو ګټو لپاره لګوي او حکومت بیا دومره وړتیا نه لري چې ولس ته د زړه کړو، روغتیا او نورې اسانتیاوې برابرې کړي.

پردې ستونزو سربېره په ټولنې کې د فساد له امله یو بل ناوړه کلتور رامنځته کیږي. خلک پیسو ته ارزښت نه ورکوي ځکه په اسانه یې پیدا

کوي او په عیاشیو، نشو او اصراف يې لګوي. مالومات يې د هغو خلکو د کورونو له ودانیو کیږي چې ورته بې پامه وي، ددوی د کورونو په طراحی او رنګونو کې ښکلا نه وي. د همدې طبقې په سرپرستی کې بحول شوې موسیقۍ بې خونده او بې کیفه وي. ادب او شاعري ټیټه وي. په انځورګرۍ کې رنګونه بې حسه او ناوړه وي. یانې داسې یو کلتور راجوړیږي چې هیڅ ډول ژورتیا او ښکلا نه لري.

دا فاسده او لوړه طبقه په ټولنیزو وسایلو واکمنه وي، چې له امله يې په ټولنې کې د پنځوونې قوت او وړتیا له منځه ځي. ټولنه نه نویو افکارو ته اړتیا لري او نه ټولنیز بدلون ته.

دا طبقه یوازې د خپلې شتمنۍ د ساتلو په فکر کې وي، کله د خپل نفوذ په مرسته قوانین بدلوي، کله حکومت بدلوي او کله هم خپله شتمني د ساتلو لپاره له هیواد بیرون نړیوالو بانکونو ته لېږدوي.

خو دې خلکو سره دا وېره هم وي چې کله ترې پوښتنه ونه شي او له دې امله پرې یو فشار موجود وي، دوی غواړي بهرنیو هیوادونو ته لاړ شي او هلته د سوله ایز ژوند خوبونه ویني، همدا خوبونه دي چې نن زموږ په ټولنې کې پوره کیږي.

یوازې رشوت اخیستل او خلک تیرایستل فساد نه دی، له خپل واکه ناوړه ګټه پورته کول هم فساد دی، ځکه همدا واک او قوت پخپله په فساد ککړ وي. مثلاً باچا چې ټول واک ترلاسه کړي؛ هغه څه کوي چې زړه يې غواړي، د فرانسې څوارلسم لويي خو په کبر دا اعلان کړی و چې ( زه حکومت یم ). دا باچا دا نامحدوده واک ځکه خطرناک و چې بې له خدایه بل چاته ځواب ورکوونکی نه و. باچا چې واک تر لاسه کړ، په همدې واک يې ولسونه وځپل او له خلکو يې د هغوی خوشالي او هوساینه واخیسته. خو په دې پیمې نړی کې دې ټولواکۍ د پوځي امریت بڼه خپل کړې دی او

د پوځ د قوت پر مټ واک تر يوه کس پورې محدود وي. ددې بابله هم ټولنيز او اقتصادي زيان دی.

د فساد يو لامل په ټولنې کې د قوانينو ډېروالی دی، ټولنه چې بې نظمه شي؛ نو حکومت يې د رغولو يوازينی لاره دا ګڼي چې نوي قوانين جوړ کړي او فکر کوي چې دا قوانين به په ټولنې کې د شته فساد مخه ونيسي؛ خو همدا نوي قوانين د چاواکو ته لا ډېر واک ورکوي او هغوی د همدې واک په مرسته لا ډېر فساد کوي.

په داسې ټولنو کې له يوې خوا چارواکي په فساد کې ککړ وي، له بلې خوا عام وګړي هڅه کوي چې له قوانينو خوندي پاتې شي، ځکه دا قوانين يې مخې ته خنډونه جوړوي، دا خلک بې وسه او بې وزله وي او په ټولنې کې د ژوند لپاره بېلابېلو لارو ته مخه کوي، مثلاً د کورونو خدمتګار، واړه مامورين او نور بېوزله خلک وړې غلاګانې کوي او خپلې اړتياوې ترې پوره کوي.

نن چې زموږ ټولنه په فساد ککړه ده، د نړۍ نور هېوادونه هم له داسې يوه حالته تېر شوي دي او کيدای شي داسې هېوادونه هم پکې وي چې حالت يې تر موږ ډېر بد و، هلته فساد کم شوی يا له منځه تللی دی، ددې لپاره بايد په چارواکيو څارنه وشي، ورسره حساب وشي او داسې اداري رامنځته شي چې ددوی څارل او ورسره حساب کتاب يې مسوليت وي.

د حکومت لوی مسوليت دا دی چې د خلکو لومړنۍ اړتياوې پوره کړي او دې ته پام وکړي چې عايد يې تر لګښتونو کم نه وي، تر څنګ يې بايد د رسنيو او پوهې په مرسته پکې ټولنيز شعور پيدا کړي، که خلکم په دې توګه خوندي شي؛ نو په ټولنې کې به فساد هم راکم شي.په ټولنه کې د فساد له منځه وړل دوه ګټې لري، يو دا چې ټولنه به په اقتصادي او ټولنيز لحاظ ښه او قوي وي او له بلې خوا به يې خلک هم د قدر وړ ژوند ولري.

# سوداګر، دوکاندارن او فساد

په تاریخ کې سوداګر، دوکانداران او کاروباریان خلک خان غوښتونکي، تیرایستونکي او احتکار کونکي ګڼل شوي او دا تور پرې شته چې په تول کې غلا کوي، همدا لامل دی چې دوی په تاریخ کې د قدر وړ ځای نه دی ترلاسه کړی. کله چې جګړه، قحطي، وچکالي او بحران وي؛ نو همدا سوداګره طبقه د خلکو له مجبوری څخه ګټه پورته کوي، دوی د توکو بیه په خپلو خوښه لوړوي اوډیره ګټه پکې کوي؛ نو ځکه ورته د تاریخ په هر دور کې بد رد ویل شوي دي.

په هر کلتور او مذهب کې دوی ته متوجې شوي دي چې په خپل کار کې دې ریښتني ووسي او تر ډیره باچایانو هم هڅه کړې چې پر دوی فشار راوړي او له فساده یې راوګرځوي.

خو داسې ښکاري چې دې فشارونو او سزاګانو هم د سوداګریز فساد مخه ونه نیوله، له سوداګرو سره د فساد لپاره لویه وسله دا وه چې توکي له دوی سره وو او خلک مجبور وو چې له دوی څخه خواړه وپیري، ددوی تر منځ اړیکې به تل خرابې وې، خو دا چې د پېردونکو شمېر زیات و؛ نو حکومت به د هغوی په پلوی د بیو د کنټرول هڅه کوله چې ځینې حکومتونه پکې بریالي کېدل او ځیني نه.

مثلاً علاءالدین خلجي په بازار کې ټولې بیې وټاکلې او بیا یې ترې په کلکه څارنه وکړه. ددې دور مورخ ضیاالدین لیکي دا چې خلک یعنې سوداګر سپین سترګي، بې شرمه، بې باکه، مکار، قانون ماتوونکي او دروغجن وو؛ نو پر توکو یې واک هم درلود او بیې یې هم خپله ټاکلې. علاالدین ددې حالت په لیدو بیې وټاکلې او په بازار کې یې عمله

وګومارله. کومو دوکاندارنو به چې په تول کې غلا کوله سزا یې دا وه چې له بدن څخه به یې غوښه غوڅېده. علاالدین به واره ماشومان بازار ته په سودا پسې لیږل او مالومات به یې کاوه، چې دوکاندارن په خپلو کارونو کې مخلص دي که نه، کوموخلکو به چې خیانت او غلا کوله سخته سزا به ورکول کېده. ددې فشارونو له امله د علاالدین په وخت کې د بازار بېې کنټرول وې،حکومت چې بدل شو؛ نو دا اصلاحات هم ورسره ختم شول.
دا سوداګریز فساد یوازې په هند کې نه و، په اروپا کې هم دوکاندارانو او سوداګرو داسې کول او هلته هم خلکوپر دې فکر کاوه، چې ددې حالت مخه څنګه ونیول شي. په اتلسمې پېړۍ کې د سویزر لینډ په جینوا ښار کې د (کیلون) په نوم خپل مذهبي حکومت اعلان کړ. د کیلون لومړی کار دا و چې په سوداګرې طبقي او خصوصاً دوکاندارانو کې د شته فساد مخه ونیسي. که به دوکاندار د رخت په ګز کولو کې غلا کوله، قصاب به غوښه قیمته پلورله یا به خیاط له نابلدو خلکو ډیرې پیسې اخیستې، سزا به ورکول کېده او جریمه به ترې اخیستل کېده. د جینوا مذهبي حکومت له یوې خوا د فساد د مخنیوي لپاره سزاګانې او جریمې وټاکلې او بلې خوا یې د مذهب په مرسته خلکو ته وعض وکړ، ویې ویرول چې په سوداګانو کې فساد ونه کړي.
زموږ ټولنې کې اوس هم د لرغوني یا منځنیو پیړیو هند په څېر حالت دی. اوس هم سوداګر او دوکانداران له ولس سره خیانت کوي او تېرباسي یې. حکومت هڅه کوي چې مخه یې ونیسي، خو دا طبقه بیا رشوت ورکوي او خپل لارې ځانته خلاصوي، نه له قانونه ویریږي او نه له مذهبه چې په سوداګرۍ کې فساد پرېږدي. برني د علاالدین د حکومت په اړه یوه خبره لیکلې چې اوس هم سمه ده
" باچا په دې برخه کې عاجز دی، وزیران تل په دې کې ناکام شوي چې دې مکار او چالاک قوم ته د پېر او پلور قوانین او ظوابط رامنځته کړي."

# چارواکي او فساد

په تاریخ کې تل دولتي چارواکي په فساد ککړ لیدل شوي. لامل یې دا دی چې دوی ته تل د قانون له مخې واک ورکړل شوی دی او دوی له واک څخه ناوړه ګټه پورته کړې ده او له خلکو څخه یې د بې قانونه کار په بدل کې رشوت اخیستی دی. ددوی د فساد په اړه کوټیله په خپل کتاب ( ارت شاستر) کې لیکلي دي " د الوتونکو مرغیو الوت مالومیدای شي، خو د دولتي مامورینو نیت نشي مالومیدای." بیا حکومت ته مشوره ورکوي چې ددوی شتمني ضبط کړي او له دې ځای څخه یې بل ځای ته بدل کړي. ( زمونږ ټولنې کې په دې چارې عمل کیږي خو کومه ګټه نه لري.)

هند کې په اتمې او نهمې پېړۍ کې فساد دومره عام شوی و، چې دولتي مامورینو به له معبدونو (مندرونو) څخه زرین بُتان غلا کول، هغه به یې ویلي کول، زر به یې ترې اخیستل او پر ځای به یې جعلي بُتان کېښودل.

د رومیانو په وخت دولتي دندې پلورل کېدې، شتمنو به اخیستې او بیا به یې له همدې واک څخه په ګټې فساد کاوه او شتمني به یې ترلاسه کوله. ( د روم په ښه او بدو دواړو حالتونو کې پاک او سپیڅلي چارواکي نه وو. اوس هم زمونږ په ټولنې او نظام کې خلک د پېسو په مقابل کې ګومارل کیږي).

علاالدین غوښتل په دولتي مامورینو کې د فساد مخه ونیسي، ویل کیږي د عوایدو برخې مامورین دومره مفلس شوي او ویرېدلي وو چې خلکو ورسره بیا خپلوي نه کوله. خو د فیروز شاه تغلق په دور کې باجا خیله د

فساد شتون وماته، د هغه دور يوه پېښه داسې ده، چې يوه عسکر غوښتل په حاظرۍ کې نوم وليکي، مامور يې نه نوم نه ليکه ، په رشوت کې يې ترې دوه اشرفۍ غوښتلې، باچا چې خبر شو عسکر ته يې دوه اشرفۍ ورکړې او هغه خپل نوم په حاظرۍ کې وليکه، مورخ باچا د فيض او سخاوت جملې وليکلې.

د مغلو په دور کې فساد ښه په زور کې و، د نورجهان د پلار خاص اعتمادالدوله په اړه ويل کيږي چې په سپين سترګۍ يې رشوت اخيسته. د اورنګزيب په وخت کې بيا د قاضي عبدالوهاب د فساد کيسې کېدلې. د هغه وخت مورخ خافي خان يې کيسه داسې کوي: چې هغه وخت کې هيڅ حکومتي چارواکی د سپيڅلتيا قايل نه و، امانت داري او سپېڅلتيا يې د ليونيو کارونه بلل.

د مغلو په وخت کې بهرني سوداګر هند ته راغلل، دوی په دربار کې خلک پېدا کړل، رشوته يې ورکړل او د خپل کار لپاره يې ترې فرمانونه واخيستل. ( دا چارې په اوسنيو نظامونو کې هم کيږي).

د مغلو له زوال وروسته ايسټ انډيا کمپنۍ هند ته راغله، له ۱۷۵۷ ز کال وروسته يې پوځي واک او قوت ترلاسه کړ، له د واک څخه يې ګټه واخيسته او ډېره شتمني يې راټوله کړه. يوه لاره يې دا وه چې د بنګال پر تخت به يې يو نواب کېناوه او له هغه څخه به يې ښې ډېرې پېسې واخيستې. د مالياتو په ترلاسه کولو کې به يې هم غلاوې کولې. له هند څخه شتمني انګلستان ته يوړه هلته يې پرې په ولسي جرګې کې څوکۍ واخيستې او د خلکو نمايندګي يې پېل کړه. ښکلي کورنه يې جوړ کړل، ډېر خدمتګاران يې وګومارل. د انګلستان ولس به ورته نوباب (نواب) ويل او د خپلې ناوړه او فاسدې شتمنۍ په مرسته به يې ټولنې کې د قدر وړ مقام ترلاسه کړ.

د اداري فساد مخنيوي لپاره دېرې هڅې شوي دي؛ خو زياترو يې پايله نه ده لرلې. ځکه د خپل واک او اړيکو له امله هغوی په فساد کې ککړ او د همدې په مرسته يې ځان هم ساته. له خپل واک څخه يې دومره ناوړه ګټه اخيستنه چې خلک به د خپل کار ترسره کولو لپاره په هر صورت رشوت ورکاوه. تر څو چې چارواکي واک ولري، په هېڅ صورت يې د فساد مخه نشي نيول کيدای. ددوی د فساد د مخنيوي لپاره تر ټولو ګټوره لاره دا ده چې واکونه يې کم شي او د ناوړه کارولو اجازه ورنه کړل شي.

# سیاسیون او فساد

په رسنیو کې زموږ په چارواکیو کې د فساد دومره خبرونه خپاره شوي، چې اوس په ټولنې کې فساد او سیاست یو ګډ ګڼل کیږي. په دې فسادونو کې له بانکونو پور اخیستل او بیا نه ورکول، د برېښنا، اوبو بېلونه او مالیات نه ورکول او تر ټولو مهمه دا چې له دولتي وسایلو څخه شخصي ګټه پورته کول دي. زموږ په لرغونو سیاسیونو کې فساد دومره عام نه و، بیا د جمهوریت له راتلوسره دا فساد مخ پر زیاتېدو شو او اوس یې دا جدي پوښتنه پیدا کړې، چې دا فساد ولې ورځ تر بلې زیاتیږي؟

یو لامل خو یې دا دی چې دلته د ګوندونو سیستم ندی پیاوړی شوی، خلک ګوندونو سره یوازې د خپلو ګټو لپاره یو ځای کیږي او ډیر مخلص هم ورسره نه وي، که یې دې ګوند کې ګټې خوندي نشي بل ته ځي او همداسې ګوندونه بدلوي، ګوندونه هم د ټاکنو په وخت کې د پارلمان غړیو ته رشوت ورکوي ځان سره یې یوزای کوي او بیا پرې همدا پیسې بیرته ګټي.

بل لامل دا دی چې د ټاکنو پر وخت یوازې نوماند ټول لګښتونه کوي؛ خو دا دومره پیسې ولې لګوي؟ یو لامل خو دا هیله ده چې واک ته له رسېدو وروسته به هغه په ټولنې کې نوم وباسي او تر نورو به لوړ شي. دویمه دا چې دوی کله واک ته ورسیږي؛ نو له خپل واک څخه به ګټه پورته کړي او پر لګېدلو پیسو سربیره به نورې هم ترلاسه کړي.

ضیاالحق چې د شورا مجلس جوړ کړ؛ نو ددوی مرستې او ملاتړ ته یې

اړتیا لرله،خلکو ته یې د پیسو ترلاسه کولو فرصتونه ورکړل. یعنې انکشافي بودیجه دوی ته وسپارل شوه، دوایرو کې خلک په واسطې وګومارل شول، تر دې چې خلکو به د ټیلیفون لین هم ددوی په سپارښته اخیسته. . دوی چې دا واک ترلاسه کړ؛ نو په ټولو دندو یې بې کېښودې، مثلا ښوونکی به په څو مقررېږي؟ د ټیلیفون د لین بیه څومره ده؟ او نور...

د سیاسیونو د فساد یو لامل دا هم دی چې کله دوی واک ته ورسېږي نو د پوښتنې او څارنې ترې څوک نه وي، چې له امله یې دوی ته د فساد لارې اوزګارې شي، دا ستونزه زموږ پر هیوادونو سربیره پرمختللي هیوادونه هم لري. د جاپان په څېر پرمختللي هیواد کې هم لومړی وزیر او شمیر نور وزیران په فساد تورن دي. په هند کې سیاسیون د وسلې په سوداګری کې ښکېل دی. جنوبي کوریا کې دوه ولسمشران د فساد په جرم بندیان دي.

واکمن سیاسیون هغه وخت په فساد اخته کیږي، چې لوی حکومتي قراردادونه ددوی په لاس شي، دوی له ملي او نړیوالو کمپنیو سره قراردادونه کوي او په بدل کې یې ترې رشوت اخلي. دا د رشوت پیسې زیاتره بهرنۍ کرنسۍ وي او په بهرنیو بانکونو کې ورته جمع کیږي.

سوداګر او د فابریکو خاوندان هم د همدې سیاسیونو په مرسته خان له مالیاتو خلاصوي او خپل غیر قانوني کارونه پرې کوي، چې ددې په بدل کې هم سیاسیون ډیرې پیسې ترلاسه کوي. ددې تر څنګ د لویو انکشافي پروژو په قراردادونو کې هم ډیر زیات فساد کیږي. د پروژو په بدل کې پیسې اخیستل کیږي او پروژې حقدارو ته نه سپارل کیږي.

دا خلک له رشوت اخیستلو څکه نه ویریږي، چې پوهیږي څوک ترې پوښتنه نه کوي، حسا ب ورسره نه کیږی، شتمني یې ضبط کیږي او هیڅ

ځوک یې زندان ته نه اچوي یا یې نشي اچولای. که فشار ډېر شي دا چارواکی یوازې د لنډې مودې لپاره له دندو لېرې کیږي؛ خو بیا بې بیرته د همدوی زامن او خپلوان مقرریږي او د فساد لړۍ همداسې پر مخ ځي. دا فساد یوازې رشوت نه دی، له خپل واک او دندو هم ناوړه ګټه پورته کیږي، مخالفین وهل کیږی، بندي کیږي، ځورول کیږي او دولت امکاناتو څخه شخصي ګټه اخیستل کیږي.

# فساد: پرون او نن

هند ته د مغلو په واکمنۍ کې بهرني سیالانیان راتلل، دا چې دوی به زیاتره له رسمي مامورینو سره مخ کېدل؛ نو ځکه یې دلته دفساد پېښې هم ډېرې ثبت کړي دي. دا فساد په گمرکي مامورینو کې و چې د رشوت په بدل کې به یې مالونه تېرول. په عدلیه ارگانونو کې هم و چې د رشوت په بدل کې به گنهگار خلک خوشې کېدل. د فرانسکو پیل سي ایرټ په نوم یو الماني سیالانی د جهانگیر په واکمنۍ کې هند ته راغلی و، هغه یوه ډېر په زړه پورې خبره لیکلې ده، په عدلیه ارگانونو او قاضیانو کې یې د فساد په اړه لیکلي " که د قانون خبره وی؛ نو دلته هېڅ قانون نشته، ټولواک نظام دی، قاضیان د قانون کتابونه لري، په دې قوانینو کې د زخم پر زخم خلاصي خبره شوې ده. خو زموږ په ځای کې به څوک دومره زړه وکړي چې پاپ له عیسویته وباسي، په همدې ډول دلته هم هېڅوک جرات نشي کولای چې د ایالات له گورنر څخه د قانون ماتولو پوښتنه وکړي.

په محاکمو کې خلک ولاړ دي، په هیڅا تر هغه وخته رحم نه کیږي، چې چاته رشوت ورنه کړي. په دې لړ کې یوازې قاضیان نو ځارنوالان ملامتول مناسب نه دي، ځکه د وبا هره خوا خپره شوې ده ، تر باچا پورې ټول لوی واړه پکې ککړ دي، ټول خلک د پیسو په حرص کې اخته دي، هیڅوک نه مړیږي، که کوم کس غواړي له والي یا گورنر سره ووینې؛ نو د رشوت ورکولو پیسې دې پیدا کړي، بې له ډالیو او شیرینۍ عریضه نه امضاء کیږي، باعزته خلک دې په دې حالت نه خفه کیږي، ځکه په دې خاوره کې دا رواج گرځېدلای".

# کار

د رغنیزو چارو المانی کارپوه لیکي، د جاګیرداری په دور کې د هغې شتمنی ډېر قدر کېده، چې بې له زیار ویستلو به ترلاسه شوې وه. د میراث مال ډېر قدر کېده، څکه په دې کې به د شتمنی تر څنګ د کورنی روایات او ارزښتونه هم رانتقالیدل چې د وارث ټولنیز مقام به ورسره لوړېده.

د غلامی او جاګیرداری تر منځه دورې کې کار سپک ګڼل کېده، څکه کار به یوازې غلامانو، مزدورانو، خدمتګارو او بزګرو کاوه. کار او زیار ته په دومره سپک نظر کتل کېدل، چې اشرافو به ورته په هېڅ صورت زړه نه ښه کاوه، تر دې چې هنرونه به یې هم نه زده کول او نه به یې پکې کار درلود. ویلي کیږي په منځنیو پېړیو کې داسې مسلمان عالمان هم وو چې لوست یې کولای شو؛ خو لیک یې نه و زده، څکه دا کار کاتبانو ورته کاوه، پر لیکونو او فتوو به یې یوازې مهر لګول کېده.

د کار په اړه وېل کېدل چې په دوه ډول دی: یو ذهن او بل څاني (بدني). څوک به چې په ذهني کار بوخت وو، څاني یا د لاس کار یې څانته سپکاوی باله. د کار ددې ویش له امله په ټولنې کې دوه طبقې رامنځته شوې، چې په کې ذهني کارکوونکو ته ډېر احترام کېده او چې به یې څاني یا د لاس کار کاوه؛ نو سپک او ذلیل وبلل شول. د هندي ټولنه د همدې ویش پر بنسټ پر طبقو وېشل شوې ده او اچهوت (چواړیان) پکې تر ټولو ټیټ او ذلیل کارونه کوي، څکه دوی په ښکته یا ناولې طبقې کې

دي.
که څه هم په ټولنې کې د کار له امله ټيټ او لوړ خلک شته، خو صنعتي دور په ټولنې کې د غلامۍ او جاګيردارۍ د دور روايات مات کړل. اوس د لاس مزدوري سپکاوی نه دی او د انسان د کار پېژندګلوي ترې کيږي. تر روسي انقلاب او اروپايي صنعتي انقلاب وروسته په ټولنې کې د کار او کاريګر مفاهيم بدل شول، د عامو خلکو قدر زيات شو او د مزدور يا کاريګر نوم پکې د خفر وړ وګرځېد. په صنعتي ټولنې کې د کار اهميت زيات شو، څوک چې کار نه کوي، اوزګار، لوفر، عياش بلل کيږي او پر ټولنې يو بار حسابيږي.
په شتمنو هيوادونو کې چې تېل راووتل او مزدوران يې خپلو هيوادونو لپاره کار ته راوغوښتل؛ نو ورسره د کار په مفهوم او ماهيت کې هم بدلون راغی، دې خلکو هلته د ټيټې درجې خلکو په حيث کار پېل کړ، چې له امله يې د وخت په تيريدو سره ددوی اهميت مخ په زياتيدو شو. دا کار له مخې خلک په ( وايټ کالر)، (بلو کالر) او يوازې کاريګر ډلو وويشل شول.
زموږ په ټولنې کې اوس هم د کار احترام نه کيږي، کاريګرو ته سپک کتل کيږي، هغه خلک څانونه لوړ ګڼي چې ميراث ورته ډېر پاتې شي. هغه دنده ښه ګڼل کيږي چې کار په کې نه وي يا لږ وي. دولتي دندې څکه ښه ګڼل کيږي چې کار پکې د شخصي هغو په پرتله کم وي، د کار کمی له دې هم ښکاري چې زموږ په ټولنه کې مناسبتي رخصتۍ ډيرې دي. د کار کلتور چې کمزوي شي؛نو په ټولنې کې ورسره د کسبګرو قدر راکميږي، چې له امله يې ټولنه شاته پاتې کيږي.
کار نه کول په شخصيت هم اغيزه کوي، هغه خلک چې مزدوران او خدمتګاران لري، که ترې لاړ شي؛ نو بې له هغو ورته ژوند سختيږي، په نورو د دومره تکيې له امله دده خپل شخصيت د مزدورانو تر سيوري

لاندې تښېږي.

په تاریخ کې ګورو چې انسان د خپل بدن د غړیو په مرسته له طبیعت سره مبارزه کړې، هغه بې بدل کړی او ځان په ګټه یې کارولای دی. په ټولنې کې د کار له امله شته توپیر د ټیکنالوجیکي پرمختګونو له امله ختم شي. که خځلې ماشینونه پورته کړي؛ نو انسان به ترې اوزګار شي او له دې سره به ټولنې کې د هغوی د ټیټوالي تصور هم ختم شي. په پرمختللیو صنعتي هیوادونو کې دا بدلون پیل شوی دی او زموږ په ټولنې کې هم پېل کېږي. نو هیله شته چې شته جاګیردارنه کلتور به له منځه لاړ شي او د کار په مرسته به یوې قدرمنه ټولنه رامنځته شي.

# غوړه مالي

ژباړه : استاد اسد الله غضنفر

چې قدرت د محدودو کسانو په لاسونو او ثروت د لږو کسانو په کورونو کې را ټول وي، په ټولنه کې غوړه مالي وده کوي او له زورورو د یو څه اخیستلو لپاره چاپلوسي په مهارت بدلېږي.
غوړه مالي معمولاً دوه اړخیزه معامله وي. غوړه مال د خپلو چاپلوسیو په بدل کې د پیسو، جایداد، لقب، ترفیع یا ملاتړ په تمه وي خو دا خبره په خوله نه راوړي ، بس فرصت ته ګوري چې کله به یې په کرلي تخم حاصل ورکړي.
په بل چا اثر پرېباسل اسانه کار نه دی. هغه څوک چې د خپلې ګټې په خاطر د غوړه مالۍ نیت لري، د مقابل لوري شخصیت په دقت سره څېړي. مثلاً په دې ځان پوهوي چې مقابل لوری کوم خویونه او څه خصوصیات لري، څه یې خوښېږي؟ او په څه خوشحالېږي؟ غوړه مال باید په دې هم پوه وي چې د چاپلوسۍ مناسبه شېبه کومه ده ؟ د غوړه مال همېشه دې ته پام وي چې که مقابل لوری شتمن دی نو د سخاوت او دریا دلۍ ستاینه یې پکار ده، او که یار پال او یار باز وي نو له ملګرو سره د کړیو ښو او قربانیو یادونه یې ضروري ده. د قدرت خاوند ته به دا وایي چې ډېر پوه او لایق سړی دی. غرض دا چې غوړه مال باید د بل د زړه د ګټلو لپاره په شرایطو ځان ښه پوه کړي.

په دربارونو کې چې مستبد واکمن په تختونو ناست وو، د غوړه مالۍ مهارتونو وده وکړه. د شاهانو د خوشحالولو او له دوی څخه د څه ترلاسه کولولپاره پکار وو چې د دوی د هر عمل ستاینه وشي. په دغسې شرایطو کې نه یوازې په خبرو کې د غوړه مالۍ خاصې ژبې انکشاف وکړ بلکې په شاعرۍ کې هم د غوړه مالۍ خورا ښکلي مثالونه وړاندې شول. سربېره پر دې ، کله چې به غوړه مال، خپل مخاطب ته خبرې کولې نو د خپل بدن حرکات یې هم باید کنټرول وای او د ستاینو د باران د ورولو لپاره ورته پکار وو چې د ویلو مناسبه طریقه ومومي.

په فارسی او اردو ادب کې د قصیدې ژانر د شاهانو او اشرافو د بریاوو د یادولو له لارې د دوی د مدحې لپاره وکارېده دا د زورور د فتوحاتو، سخاوت او زړه ورتیا په بیان کې د مبالغې هنر و، داسې چې د زور ښېښتن به یې د دنیا تر ګردو لویو فاتحانو، واکمنو او مشهورو کسانو لوی او بر معرفي کړ.

مثلا د هند د مغولو د زوال د زمانې واکمنو ته ټول هغه صفات منسوبېدل چې د دوی نامې نیکونو لرل. شاعرانو به دوی په مدحو خوشحالول او دوی به د مدحو په مقابل کې شاعرانو ته د ویاړ چپنې وراغوستې او قیمتي سوغاتونه ورکول.

مورخانو هم د غوړه مالۍ لاره خپله کړې وه. ابولفضل په اکبر نامه کې اکبر پاچا ته داسې لقبونه اخلي او داسې عبارات کاروي چې دی په فوق العاده انسان بدلوي. ابوالفضل لیکي: دی د نجیبې کورنۍ ، خوشحاله څېرې، نېک خوی، عالي نبوغ، سپېڅلې نیت، ثابتې عقیدې اوکامل حکمت خاوند دی. دی د ټول ټول استعدادونو، د عزت، د سخاوت، د فوق العاده جرات او د سم قضاوت ښېښتن دی. د ده عفوه حد نلري.

ابوالفضل تعجب څرګندوي چې یو انسان څنګه دومره زیات صلاحیتونه

لرلای شي. دا د غوره مالي انتها وه او اکبر پاچا ورنه خوند اخیست.
د غوره مالي نخښه کله نا کله خطا شي. ولز ګات ریجر په خپل کتاب کې
چې د غوره مالي ستاینه نومېږي ، ځینې جالبې پېښې لیکلې دي.
یوناني مورخ استرابون د مقدوني سکندر د خوشحالولو لپاره په خپل
تاریخ کې د سکندر او پورس تر منځ د دوه کسیزې جګړې واقعه هم را
اخیستې وه . د استرابون مقصد دا و چې پاچا وستایي او زړه ورتوب يې
وځلوي . ده د خپل کتاب دغه برخه د سکندر په مجلس کې چې جنرالان
یې هم ناست و، ولوستله. سکندر یې په اورېدو دومره په قهر شو چې
کتاب یې سین ته خطا کړ او مولف ته یې وویل چې ته هم سین ته د
غورځولو یې .
یوه بله جالبه کیسه د هولبین ده. د ان اف کلیویس څېره دومره ښکلې
انځور کړه چې اتم هانری د ان د انځور له لیدو وروسته له هغې سره واده
وکړ. خو وروسته بیا هانری ته پته ولګېده چې ان هغومره ښکلې نه ده
لکه په انځور کې چې ښکاري . اتم هانري له واده شپږ میاشتې
وروسته هغې ته طلاق ورکړ او هولبین د پاچا له قهره د ځان بچولو لپاره
وطن پرېښود.
د فرانسې څورلسم لویی دومره پیاوړی واکمن و چې ویل به یې دولت
یعنې زه. خو د غوره مالي حدود ورمعلوم و او یو ځل یې د دربار شاعر
راسین ته وویل چې : زه به دې ډېر وستایم که مې ته لږ وستایې.
ناپلیون یو ځل یوه مارشال ته د خپلو درباریانو په اړه وویل چې : دوی ما
د هغو تر ګردو ښکلو ویناوو ویناوال بولي چې ما یې یوه کلمه هم نه ده
ویلې. مارشال د درباریانو دا عمل په دې وجه سم وباله چې : د نظام د
جلال او سرلوړي لپاره دي. د دغسې چارو پوره اجازه ورکړئ.
زموږ په خپله ټولنه کې هم د غوره مالي دود غزونې کړې دی. موږ په دې

کار کې تر خپلو نامې اسلافو په هیڅ وجه شاته نه یو. هرځل چې یو نوی پوځی دیکتاتور د چارو واګې تر لاسه کړی ، موږ سمدستی هغه د دې زمانې محمد بن قاسم یا صلاح الدین ایوبی وبولو. د طنز خبره خو دا ده چې دیکتاتور پخپله هم ورو ورو په دې فکر کې ولوېږی چې د پخوانو اتلانو روح پکې پوکل شوې ده. نتیجه دا راووځی چې هر دیکتاتور یا سیاسی لیډر د غوړه مالانو او خورا نژدې دوستانو په کړی کې ایسار شی او هغوی ورته دم په دم دا وایی چې ته خو د ملت ناجی یې .

په فیوډالی کلچر کې د واک او ځواک خاوندان د ځانونو لپاره داسې ستاینې غواړی چې په دوی کې نشته. زموږ په سیاسی او اجتماعی ادارو کې ،چې مشران او آمران له مامورینو او لاس لاندې کسانو د خوشامندو او ستاینو توقع لری، د خپلو مقصدونو د پوره کولو لپاره د یوې وسیلې په توګه چاپلوسی ورځ په ورځ رخنه کوی. دا د ځان په لور د زورورو د پام د اړولو لپاره تر ګردو اسانه لاره ده.

تاریخ شاهدی راکوی چې غوړه مالی د خپل مخاطب سترګې ړندوی او په غلطو لارو یې سموی خو له هیڅچا سره جرات نه وی چې ورته ووایی ، جناب په غلطو لارو روان شوی یې ! د دې وضعیت د دوام نتیجه زوال او ناکامی وی.

# مساوات

په ټولنې کې ځینې طبقې د طبقاتي چلند او نامساوات ښکار وي، دا اغیزمنې طبقې شته طبقاتی چلند، لویه بې عدالتي ګڼي؛ خو هغه خلک چې په لوړو طبقو کې دي او د کورنۍ له امله ورته لوړی امتیازونه ورکوي، هغوی بیا د ویش او نامساوات یوه طبیعی چاره ګڼي. په ټولنې کې هغه طبقې د مساوات لپاره غبر پورته کوي، چې محرومې او بې امتیازه وي. دوی هیله من وي چې شته لوړې ژورې ختمې شي او دوی ته په ټولنې کې مساوي حق ورکړل شي.

هر لوی مذهب او انقلاب کې پر مساوات ټینګار کیږی. ځکه په دې توګه دوی د محرومې طبقې ملاتړ ترلاسه کوي. د عیسوي دین په لومړیو کې ټولنه د مساوات پر بنسټ جوړه شوه، لوړې ژورې ختمې شوې او د برابرۍ اصول وضع شول. اسلام کې ټول خلک سره ورونه او برابر دي. په سامي مذهب کې ټول انسان د ادم علیه السلام اولاده ګڼل کیږي او د خدای په نزد ټول سره برابر دي، په دې توګه هڅه شوې چې په ټولنې کې شته لوړې ژورې له منځه لاړې شي.

خو ددې ټولو مذهبي اعلانانو او تعلیمونو سره بیا هم ټولنه برابره نه شوه، ټولنې کې د سیاسي، ټولنیزو او اقتصادي ځانګړتیاو له مخې درجه بندي کېدله. هر نوی مذهبي حرکت به چې پیل شو؛ نو د مذهب د بنسټیزو تعلیماتو په مرسته به یې پر مساوات ټینګار کاوه او په خپلې ډلې کې به یې ددې نندارہ کوله. مثلاً د ډلې هر غړي ته به یې (اخي) یا

ورور غږ وركاوه. حسن بن صباح چې اسماعيلي ډله منظمه كړه؛ نو د ټولنې غړو به يو بل ته د ملګري غږ كاوه.

په انقلابونو كې هم پر دې ټينګار شوى دى چې په ټولنې كې شته پخوانى طبقاتي ويش له منځه لاړ شي. فرانسې كې تر انقلاب وروسته د ټولو امرينو (خطابونه) ختم شول او هر وګړى (ستيزن) يا ښاري وبلل شو، چې په روسي انقلاب كې ورته د (كامريډ) لغت كارېده.

په ټولنې كې مساوات نظره هم بدليږي. يو نظر دا دى چې ټول خلك سره ورته ټولنيز مقام ولري. هر وګړي سره انصاف وشي او د شتمنۍ، نسل او ژبې له مخې هيڅ ډول ويش او تعصب نه وي، شتمن پر بيوزله لوړ ونه ګڼل شي.

اوس وخت كې مساوات په دې مانا دى، چې ټول خلك د قانون پر وړاندې سره برابر دي او په جمهوري نظام كې ټول خلك د رايې حق لري.

په اوسنيو جمهوري او پانګوالو نظامونو كې د مساوات ټكى خوړ دى؛ خو په اوس هم د پردې تر شا ټول امتيازات يوازې واكمنې طبقه ته وركړل شوي دي، مثلاً كه ويل كيږي چې هر وګړي ته مساوي حق وركول كيږي دا اصول مساويانه ښكاري او داسې مالوميږي چې تر دې وروسته به ټولنه د وروركلوۍ په اصولو جوړه شي؛ خو ددې اصولو له مخې اقتصادي بې عدالتۍ ته يو اخلاقي دليل وركړل شوى دى. پانګوال ځكه شتمني راټوله كړه چې موقع وركړل شوې ده او دا موقع هر څوك لري، په دې لاره كې هغه خنډونه نه ښكاري، چې د محرومې طبقې د پرمختګ مخه يې نيولې ده، مثلاً امريكا كې د فرصتونه شته، خو تور پوټكي ترې ګټه نشي پورته كولاى، ځكه دوى ته خنډونه پراته دي. هغوى پر دې پړه ګڼل كيږي چې زده كړې نه لري، سست دي، جرمونه كوي او د نشو شوق لري.

په ټولنې كې انسانان يو ډول ښكاري؛ نو د طبقاتي توپير لپاره انسان له

سمبولونو مرسته اخلي. مثلاً لباس، سینګار، استوګنځایونه، د کارولو سامان، ژبه او د مزدورانو شمیر ...

دا سمبولونه یوازې تر هغه وخته ګټور وي، چې انسان په یوې ځانګړې سیمې کې ژوند کوي او خلک یې پکې پېژني. له دې ځایه چې کله شي او بل ځای ته خپل ټول سمبولونه ځان سره نشي لېږدولای؛ نو هلته بیا د همدې ډول پېژندګلويۍ لپاره خپلې شتمنۍ ته مخه کړي، مثلاً هلته داسې استوګنځای چې ددې وړ وي، په ښو او لوړو هوټلونو کې استوګنه، ګارسونه د بخششي ورکول، په کارت د ځان پېژندګلويي کول، له خپلو هم رطبه خلکو سره اړيکې جوړول او نور... په دې توګه دا شخص نوي ځای کې هم په یوې ځانګړې سیمې پورې محدود وي او بیرون ترې نه وځي.

ټولنیزه درجه بندي په سیمې پورې اړه لري، که شتمن کس له خپلې سیمې ووځي او خپل سمبولونه له ځان سره یونسي؛ نو خپله پېژندګلوي یې ختمیږي او خلک یې یو عام انسان ګڼي، مثلا که یو شتمن کس په لېني بس کې سفر کوي؛ نو دا هم د نورو عامو مسافرو په څېر ښکاري او کوم توپیر په کې نه لیدل کیږي، تر دې چې د بس کلینر به هم ورسره د عامو خلکو په څېر خبرې او چلند کوي، دا شتمن خلک په دې پوهیږي، ځکه نو په بسونو کې سفر نه کوي، په خپلو شخصي وړو موټر کې ګرځي. د انسان په حیث په دوی او نورو خلکو کې هېڅ ډول بدني توپیر نشته.

وايي چې ګوډ تیمور یوه ورځ پخپل دربار کې له ملک الشعراء وپوښتل چې ووایی زما قیمت څومره دی ؟ هغه ورته ووېل (۳۰۰۰) درهم . تیمور ووېل دا خو ایله زما د پټکي بیه ده، شاعر ورته په ډېر ادب ووېل چې ما هم د پټکي قیمت وښوده.

## سوالگر

په هرې ټولنې کې بيوزله، سوالگر او خيرات وي، نن هم په سرکونو، کوڅو او واټونو کې دا خلک خپاره دي. زموږ په ټولنې کې له دوو لارو کار اخيستل کيږي: لومړی خو دوی مذهبي جذبي راپاروي او د خدای او رسول په نوم خيرات غواړي او په بدل کې يې د اجر او ثواب خبره کوي، په دې طريقې کې د خيرات په بدل کې د ثواب معاوضه ورکول کيږي، دا ډول خيرات هغه خلک ورکوي چې له يو اړخيزو معاملاتو سره يې جوړه نه وي.

د خيرات لپاره دويمه لار په انسان کې د عاطفي راپارول دي، عاطفه په هر انسان کې شته، هر انسان که د يو چا ستونزې واوري يا يې په درد پوه شي، مرسته ورسره کوي. سوالگر خپلې ستونزې په ژړغوني غږ بيانوي او د خلکو عاطفه پرې راپاروي، ځينې پکې بيا خپل معيوبيت ښايي او له دې لارې خيرات ترلاسه کوي.

شتمن خلک له دوی هم گټه پورته کوي، دوی سره مرسته کوي، خواړه ورکوي، له يوې خوا يې اخرت کې د اجر تمه کوي او له بلې خوا په ټولنې کې له دې لارې ښه نوم گټي.

سلجوقي وزير نظام الملک طوسي په خپل مشهور کتاب ( سياست نامه) کې ليکلي چې په ټولنې کې د بيوزله خلکو شتون اړين دی، که دوی نه وي؛ نو شتمن خلک به چاته زکات ورکوي.

له سوالگرو سره د ټولنې چلند بدليږي او مالومات يې د اروپا له تاريخه

کولای شو. په جاګيرداري دور کې به باچا، امرينو او کليسا له سوالګرو سره ډېره مرسته کوله. تر شپاړسمې پېړۍ. دوی ته پام کېده چې خانګړي ځای ورته جوړ شوی و چې هلته به اوسېدل او خوراک څښاک به يې کاوه. ټولنه چې له کرنيزې څخه صنعتي ته واوښته، ددې خلکو په سوه يې چلند هم بدل شو، څکه دې وخت کار ته اهميت ورکول کېده، که چا به کار نه کاوه، هېڅ ډول مرسته ورسره نه کېده. له يوې خوا خلکو ويل چې حکومت بايد د سوالګرو غم وخوري او مرستې ورسره وکړي، له بلې خوا بيا د همدې سوالګرو پر ضد کمپاينونه وشول، څوک به چې په سوال وليدل شو، سر به يې خرېيل کېده او په دورو به وهل کېده. د اولسمې پيړۍ تر پای پورې دوی په ټولنې کې مجرمين وبلل شول. حکومت بايد سوالګرو ته روزګار برابر کړی وای، ددې لپاره کار ځايونه جوړ شول، بيا به چې څوک له دې ځايونو وتښتېدل او په پټه به يې سوال کاوه؛ نو پوليسو به نيول. خيرات ورکول د خلکو د بې لارو کولو په مانا شول، چا بيوزلو سره مرسته نه کوله، په ټولنې کې خيرات اخيستل شرم او ذلت ګڼل کېده.

په سويزرلينډ کې د کالوين مذهبي حکومت پرېکړه کړې وه، چې سوالګرو او قلندرو ته به بيخي خيرات نه ورکول کيږي، دوی له مذهبي اړخه د خيرات اخيستو مخالفت وکړ او د سينټ پال دا خبره يې د ثبوت په توګه وړاندې کړه ( چې څوک کار نه کوي د خوړو حق نه لري). ددې دليل دا و چې کار سره د انسان بدن روغ او قوي وي.

تر دې وروسته حکومت د سوالګرو او خوشاتړو لپاره نوی قوانين جوړ کړل. زموږ په ټولنې کې څکه د سوالګرو مخه نه نيول کيږي چې دلته لا تراوسه ډېر خلک بې زياره شتمني لري، دا شتمني خيراتوي او په ټولنې کې ځانته ښه نوم ګټي. له بلې خوا حکومت خپل مسوليت نه

احساسوي، چې بېوزله او اوزګارو خلکو ته کار ورکړي او فعال خلک یې کړي. زموږ په ټولنې کې د بېوزله خلکو تر څنګ ډېر داسې سوالګر شته چې دا سوال یې کسب او دنده ده. په زړه پورې دا ده چې زموږ په ټولنې کې مذهب حکمرانه طبقه هم کاروي او سوالګره طبقه هم او دواړه ترې ګټه ترلاسه کوي.

# ټوکې ټکالې

کومې ټولنې چې د کار کلتور نه لري، اوزګار خلک پکې عزتمن او شرفاء ګڼل کیږي او هڅه کیږي چې له کار خوند وساتل شي، هغه خلک چې د کار مسولیت نه لري د کار څخه د خلاصون لپاره لارې چارې هم پیدا کوي، مثلاً کار په ځنډ کوي، خلاصوي یې نه ، سستي پکې کوي. لامل یې دا دی چې په ټولنې کې نه د کار قدر کیږي او نه دومره معاوضه لري چې خلک ترې اوزګار شي، همدا لامل دی چې کار د ښه کېدو پر ځای خرابیږي. په دې کې د مخالفت جذبه هم پیدا کیږي او هڅه کیږي چې مرور خلک د کار مخې ته ستونزې پیدا کړي.

د کار نه کولو له امله په ټولنې کې د ټوکو ټکالو او وخت تېرولو نوی کلتور امنخته کیږي، ځکه چې کار نه وي، د اوزګار وخت تیرولو لپاره هم باید یو څه بوختیا پیدا شي. د اوزګار وخت تیرولو لپاره خلک سره راټولیږي، چای جوش کیږي او کیسې پیل کیږي. دا صحنه په هرځای کې وي، په دفترونو کې مامورین سره راټول شوي وي ټوکې ټکالې کوي، څه یې په ټیلیفون له خپلو ملګرو سره خاندي راخاندي. که یې وخت پیدا کړ، لږ کار به هم وکړي ګني ټوله ورځ به په همدې ذهني عیاشۍ کې واړوي.

سیاست د ټوکو ټکالو ښه موضوع ده، چې ورځپاڼې ورته مواد برابروي، په ورځپاڼو کې سیاسیونو په اړه هر اړخیز مالومات او حتی شخصي خبرې او اسناد هم وي. خلک سره کینې له خبرو خبرې پیدا کوي او همداسې په خپلو جوړو کړیو روایاتو کې سره ورکیږي. د ورځپاڼې یوه کارمند وبل موږ

پخپل اخبار کې د سیاسي خلکو په اړه پوره تفصیل ځکه وړاندې کوو چې خلک غواړي ددوی په شخصي ژوند پوه شي. خلک غواړي د سترو خلکو په اړه په وړو وړو خبرو خبر شي او له دې لارې د هغوی شخصیت راوپرځوي، دوی غواړي چې خپل مشران او ستر خلک خپل قطار ته راولي، ددوی په اړه که کومه شخصي خبره یا د اخلاقي فساد کومه پېښه راڅرګندېږي؛ نو خلک ورته خوشالیږي، په دې توګه د هغوی جادو ماتیږي، که څه هم دا په ښکاره یوازې یو سند ښکاري، خو په حقیقت کې لویې لویې اسطورې راپرځوي.

دا ټوکې ټکالې څه ګټه هم لري که یوازې وخت ضایع کول دي؟ له ورایه وخت تېرول ښکاري، خو ځینې ګټې هم لري، چې یوه خو مو پورته یاده کړه. دویمه ګټه دا ده چې ددې ټوکو ټکالو په مرسته د خلکو د زړه بړاس وځي او په دې خبرو کې یې شته د بیوسی او بې وسی احساس راکمیږي. په خلکو د نقد او د هیواد په حالاتو له نیوکو وروسته ددوی ذهنونه ارامه کیږي او په ملکي چارو کې برخه اخلي.

د ټوکو ټکالو کلتور د سیاسي او ټولنیز شعور په رامنځته کولو کې مرسته کوي، ځکه په دې کې بحثونه کیږي، دلایل ویل کیږي، دفاع کیږي، غندل کیږي او دا ټول کارونه د عام ولس ذهني وړتیاوې رابرسیره کوي، د حالاتو درک پکې پیاوړی کوي او هغوی په خپلو ګټو او زیانونو پوهوي. په خلکو کې ورسره د خبرو زغم پیدا کیږي، د نظر ورکولو روایت پیل کیږي، د هغو خایونو حالت درک کیږي چې جاسوسان یا استخباراتي کارمندان پکې وي او سیاسي ازادي پکې نه وي، دلته خلک دا زده کوي چې څه ډول خبرې وکړي او ګرم هم نه شي، بندیزونه چې ډېر وي خلک د اوازو په بڼه خپل نظریات څرګندوي.

د ټوکو ټکالو رواج پخواني دی. د لطف الله خان په نوم یو سیالانی په

نولسمې پېړۍ کې سند ته راغلی و، د سندیانو د ټوکو ټکالو به اړه یې لیکلي دي ( ما سندي ماټوګان ولیدل چې ټوله ورځ زما د خیمې ته ناست وي او بحثونه کوي، پر حکومتي چارو یې خبرې کولې، یوې ډلې ویل چې دا هیواد ختم دی او زر به پرې انګریزان واکمن شي او ټالپر ددې مسول دی، دوی ولې له انګریزانو سره اړیکې پراخولې، چې پر هند یرغل وکړي اوس به هغوی زموږ هیواد راځخه نیسي).

که څه هم دا ټوکې ټکالې وې؛ خو کومه وړاندوینه یې چې پکې کړې وه هغه ربښتیا شوه.

# زموږ ټولنه او NGO

زموږ په ټولنې کې اوس یوه پوښتنه دا کیږي چې (این جي او) یا شخصي اداري څه دي؟ دوی څه کوي؟ او په ټولنه کې یې تراوسه کوم بدلون راوړی دی که نه؟ که ددې ادارو تاریخي شالید ته ځیر شو، په اړه یې یو متوازن نظر ورکولای شو. دا اداري نوې نه دي، د پخواني هند په مستعمره دور کې دا اداري ډېرې زیاتې وې، ځکه حکومت چې د نورو لاسونو ته ورغی او هغوی حکومت د خپلو ګټو پربنسټ جوړ کړ؛ نو بېلابېلو سیاسي، ټولنیزو او مذهبي ډلو یکې خپله پېژندګلوي ناخوندي وګڼله. ددې پېژندګلویې د خوندیتوب لپاره دې ډلو هڅه وکړه، چې خپله لاس په کار شي او له حکومت پرته یو کار وکړي.

دا شخصي اداري چې جوړې شوې، د حکومت د شک لېرې کولو لپاره یې اعلان وکړ، چې دوی په سیاست کې کار نه لري او له شته نظام سره وفاداري دي. واکمن انګلیسي نظام بیا هم دوی ته د شک په سترګه کتل، پردوی د څارنې او کنټرول لپاره یې ځینې قوانین وضع کړل ، لکه دوی باید (کوپراټیو سوسایټي) له مخې ځان ثبت شي، خپله کړنلاره ولري او چې هر ډول چانده یا مرسته ورسره کیږي، حکومت ته یې باید حساب ورکړي.

ددی ملکي ډلو لومړی موخه دا و، چې د حالاتو په بدلون کې دوی بیا هم خپله پېژندګلوي خوندي وساتي. حکومت دوی ته پام نه کاوه، خپلو ډلو او ټولنو ته تعلیمي اداري جوړې کړې. له بیوزلو سره د مرستې لپاره یې

چاندې او خیراتونه راټول کړل او د میرمنو د حالت د ښه کولو لپاره يې هلې ځلې پیل کړې.

ددې ټولنو مالي سرچینې د خلکو چندې، بخششونه او د ټولنو هغه شتمن غړي وو، چې په ټولنیزو چارو کې به یې برخه اخیسته. خلکو به چې دوی ته چانده کوله، بیرته به یې پرې خارنه هم کوله او ځان یې تقریباً له دوی سره حقدار ګاڼه. دې کار ټولنې کې ځینې جمهوري فعالیتونه پیدا کړل او د احتساب شعور یې وزیږاوه. هر ټولنې به دوره یې ټاکنې کولې، دا هڅه کېده چې ځینې خلک ټولنه انحصار کړي، خو بیا به هم ټاکنې پکې کېدلې. په مستعمره دور کې دې ډول خپلې ټولنې جوړې کړې او داسې خلک هم پکې پیدا شول، چې خپل ټول ژوند یې ټولنیز خدمت ته وباښه.

ددې ادارو ځینې آثار لکه تعلیمي ادارې، روغتونه، مرستندویه ادراې، باغونه او نور... اوس هم زموږ په هیواد کې شته. دې ټولنه په خلکو کې یو ډول سیاسي شعور زورلی و چې وروسته بیا له همدې شعوره بېلابیل حرکتونه رامنځته شو او د انګلیسانو پر ضد یې د خپلواکۍ ترلاسه کولو هلې ځلې کړې دي.

تر خپلواکۍ وروسته ددې ټولنو اهمیت راکم شو، ځکه حکومت رامنځته شو او فکر کېده چې دا به د ټولنې په کلتوري، ټولنیز او ژبني پرمختګ لپاره کار کوي. دې سره د ټولنو داېیره محدوده شو او ځینې تش پر نوم ټولنې پاتې شوې.

د ۱۹۵۸ ز کال مارشل لاء، د بنګال بېلتون، د ذوالفقار بهټو کاواکه جمهوریت او د ضیاالحق امریت په ګډه حکومت کمزوری کړ، دا قانون د حاکمیت وړ تیا یې نه لرله، امن یې نشو ساتلای او نه یې د خلکو د هوساینې لپاره ګامونه اخیستلای شول. په ۱۹۸۰ز لسیزې کې یو ځل بیا غیر سیاسي ټولنې راپېل شوې، دا ځل ددې ټولنوجوړښت، کړنلارې او

فعاليتونه د پخوانيو هغو په پرتله بدل وو، مشترک ټکې يې يوازې دا و
چې دا هم د حکومتي کړنو په غبرګون کې رامنځته شوې.
اوس يوه شخص يا ډلګۍ يوه شخصي (اين جي او) رامنځته کوي. لومړی
يوه غير سياسي موضوع سوژه راپيدا کوي او بيا ګوري چې څوک ورته پر
دې موضوع د کار لپاره فنډ ورکولای شي. دا ادارې زياتره په هغه صورت
کې رامنځته کيږي چې کوم بهرنی هيواد يا ټولنه د مرستې اعلان وکړې،
لکه د چاپېريال ساتنې لپاره مرسته، د ښځو د ژوند د کچې لوړولو لپاره
يا نور ...
اين جي او چې جوړه شي او له بهرنيانو مرستې ترلاسه کړي، همدا
بنسټ اينسودونکي خلک يې مشران او چلوونکي شي. داسې هم کيږي
چې ټوله کورنۍ په همدې ادارې کې کار کوي، لوړ معاشونه اخلي او له
همدې ورکړل شوي فنډ څخه موټرې او نور وسايل پېري، خپل کورونه
ورته په کرايه ورکوي او په دې توګه د پېسو راټولول پيل کيږي.
دا چې هره (اين جي او) پر يوې ځانګړې پروژې کار کوي، د کار لپاره
هماغه برخې متخصصين ګوماري، له هغوی کار اخلي او په ټولنو کې نورو
خلکو ته هيڅ اړتيا نه لري. ددې ادارو زياتره يې نه خپل اصول لري اونه
پکې ټاکنې کيږي، خاوند يې مشران وي او نور خلک پکې يوازې د معاش
په بدل کې کار کوي. دا (اين جي او) ګانې زياتره د سوداګريزو ادارو په
څېر وي چې يوازې خپل کاروبار کوي، له بهرنيانو پېسې اخلي، لګوی او
ورته ځينې سيمينارونه، ورکشاپونه او کلتوري پروګرامونه جوړوي.
دوی په دې کارونو خلکو ته څه ورزده کوي؟ زياتره ادارې بيا وايي چې موږ
يوازې په ټولنې کې شعور د پيدا کولو لپاره کار کوو او کوم سياسي اړخ نه
لرو. دا خبره څکه کوي چې د ادارو خاوندان نه غواړي د بهرنيو
مرستندويه ادارو، حکومت او سياسي ګوندونه تر منځ ټکر رامنځته شي.
دليل دا وايي چې، که په خپلو فعاليتونو کې سياست ته ځای ورکړي، بيا

په ولس ته سم کار نشي کولای. په دې صورت کې که په هيواد کې هر ډول نظام وي دا ( اين جي او) ادارې پکې ځان ساتلای شي.
دا ادارې د پخوانيو هغو په څېر له ولس سره مرسته نه کوي، ځکه ورسره خلک هم علاقه نه ښايي. په ورکشاپونو او کنفرانسونو کې يوه مشخصه ډله (مسلکي اوربدونکي) ګډون کوي. دا ډله په هرې غونډې کې ګډون کوي، ددوی کار يوازې په ښو هوټلونو کې شپې، ښه خوراک او د څو ورځو ګډون پېسې اخيستل دي. دوی پوهيږي چې دا بهرنۍ پروژې؛ نو د نورو په څېر دوی هم هڅه کوي چې خپله برخه ترې ترلاسه کړي.
آيا دې (اين جي او) ګانو په ټولنې کې کوم شعور پېدا کړی دی؟ ددوی د دومره فعاليتونو سره بيا هم نه زموږ چلند بدل شوی او نه راکې کوم شعور پېدا شوی دی، ځکه ددې ټولنيز بدلون لپاره داسې کارکوونکو ته اړتيا ده چې په اخلاص کار وکړي، زيار وباسي او يو ټولنيز حرکت رامنځته کړي. نو که دددې ادارو کارکوونکي خپله فاسد وي او په رښتيا سره کار نه کوي؛ نو ټولنيز شعور او بدلون به څنګه راولي؟ ددې ادارو کارکوونکي ځان تر عام ولس لوړ ګني او هغو ته په ورکشاپونو کې ايله ادب او ټولنيز چلند ورزده کوي، آمرانه چلند ورسره کوي، ددوی او مخاطبينو تر منځ هيڅ اړيکه نه وي، يوازې خپله لکچر وړاندې کوي، پېسې اخلي او وېناګانې اوروي.
دوی هڅه کوي وينا يې ډېره انتقادی نه وي، يوازې څو بيانيه خبرې وکړي چې بحثونه پرې ونه شي او خبره زر ختمه شي، تر څنګ يې دا کارپوهان يوازې د خپلې موضوع مسلکي اړخ ته ګوري او نورو اړخونو ته يې هيڅ پام نه کوي، مثلاً ( د ماشومانو د کار) په اړه يوازې د قانون له مخې خبرې کوي او پر دې هېڅ فکر نه کوي چې ماشومان ولې درانه کارونه کوي؟ مسوول يې څوک دی؟ او څه ډول يې مخه نيول کېدای شي؟ ځکه دوی خپله هم ددې پوښتنې ځوابونه نه لري. يا د بيوزلې د له منځه وړلو په اړه هم شاليد پسې نه ګرځي يوازې خپله موشګافي وکړي، خبرې سختې

کړي او موضوع له سره تېره کړي، له دې امله په خلکو کې د موضوع په اړه هېڅ فکر او شعور نه پېدا کیږي او کېدای شي ددې خلکو موخه به هم همدا وې، چې په خلکو کې شعور پېدا نه شي.

په سیمینارونو او ورکشاپونو کې له وېناوو څخه په (این جي او) کې دننه د خبرو کولو یو کلتور رامنځته کیږي. نوې ځانګړې ژبه جوړیږي چې خپل ځانګړي اصطلاحات پکې کاریږي او نور خلک پرې نه پوهیږي. د خبرو ددې کلتور له امله په دوی کې د مطالعې شوق ختمیږي او پر عمل پکې ډیر ټینګار کیږي. ددوي په نظر ټولنه د نظري کار په پرتله عملي کار ته ډېره اړتیا لري.

که ددې (این جیو ګانو) اداري جوړښت ولیدل شي تر هر چا ډېره بیوروکراسي پکې وي، خاوندان یې تر ټولو ډیر امتیازات اخلي او مامورین یې نه چندان امتیازات لري او نه هم ورسره ښه چلند کیږي. جالبه دا ده چې همدوی د انساني حقونو خبرې کوي، خو خپله نه د انسان حق پېژني او نه ورته احترام لري.

د ( این جیوګانو) زیاتره کارکوونکي له لوړې طبقې څخه وی، دوی کې خپلې ټولې ستونزې، لکه کبر، غرور او تریخ چلند شته وی، په دې توګه دا اداري په یوه ډول د لوړې طبقې ځانګړی کلتور هم خوندي ساتي، ځکه ددې طبقې خلک له مالي پلوه ډاډه وي، امکانات لري، ټولنې ته ننوځي ټولنیز کارونه کوي، په خلکو کې خپلو محبوبیت زیاتوي او تر څنګ یې شایسته ډېرې پېسې هم ترلاسه کوي.

په (این جیو ګانو) یوه نیوکه دا کیږي، چې دوی له بهره پېسې اخلي او په خلکو کې یې پر ځان باور او تکیه ختمه کړې ده، ځکه بهرنیان چې دوی ته پېسې ورکوي؛ نو کارونه هم هغوی پخپله ښایي او دا اداري پرېکړه نشي کولای چې ټولنې کې کومې ستونزې دي؟ او څه اړتیاوې لري چې باید پوره شي؟

بله دا چې پروژې يې لنډمهالي وي، يو کار پيل کړي، وخت يې پوره شي هغه نيمايي پاتې شي ورپسې بل پېل کړي، کارونه نيمګړي پاتې کيږي او په اړه يې هېڅ فکر هم نه کيږي او په ټولنې کې کوم مثبت بدلون رامنځته کولای شي.

په بهرنيو مرستو او نيتونو هم خلک شک کوي، څکه له يوې خوا يې بهرنيان استحصال کوي او له بلې خوا ورسره بېرته مرستې کوي، په خلکو کې شک پيدا کيږي چې ددې مرستو تر شا به حتمن کومه دسيسه وي. دوی فکر کوي چې بهرنی، مرسته ګوونکې ادارې خپلې موخې لري او موږ سره د مرسته په پلمه زموږ مالومات ترلاسه کوي جاسوسي مو کوي.

د (این جيو ګانو) له لاسه زموږ سياسي کلتور هم بدل شوی دی، په ۱۹۶۰ او ۱۹۷۰ ز لسيزو کې سياسي حرکتونو رامنځته شوي وو، ددې سياسي حرکتونو غړي له حالاتو نهيلي شول او په همدې موسسو کې يې کارونه پيل کړل، په ټولنې کې شته سياسي حرکتونه له منځه لاړل او نوی د سره رامنځته نه شول.

دا پوښتنه هم کيږي چې ددې (این جي او) يا موسسو راتلونکی به څنګه وي؟ ځواب يې دا دی چې بهرنی، مرستې او فنډونه پرې بند شي؛ نو دوی به هم خپلې دروازې وتړي. له بده مرغه دوی په دومره وخت کې ټولنه خپل بنسټ نه دی ګرځولای، برعکس يې له ټولنې سره بې رحمي کړې ده، خلک يې خفه کړي دي، د حکومت ناسمې پاليسۍ يې نه دي ننګولي، هڅه يې کړې چې موازي نظام ورسره رامنځته کړي او د څو کسو ګټې پکې خوندي وساتي.

**پای**